# حقیقت دا دے



همیش خلیل

---

اشاعت ——————— اول

نېټه ——————— جنوري ۱۹۹۸ء

شمېر ——————— يو زر

کتابت ——————— لطف الله خوشنويس

چاپونکي ——————— ملّت ايجوکيشنل پرنټرز لاهور

بيعه ——————— ۵۰ روپۍ

Rs 5 0

---

**درک :-**

يونيورسټي بُک ايجنسي خيبر بازار پېښور

شاهين بُکس سپوږمۍ پلازه جمرود روډ پېښور

---

# تړون

د محمد هوتک په نامه

چې د پښتو ادب یوه ډېره ارزښتناکه پنګه

یې له ورکېدلو محفوظه او اماني کړه .



# فهرست

# یو څو ضروري خبرې

کوټه (بلوچستان) کښې د کال ۱۹۹۶ء د نومبر په اوومه او اتمه ورځ درې بجې ماسپښین د "سکام ادبي اکېډمي" د انتظام او اهتمام لاندې د محکمه ثقافت په هال کښې یو ښه دروند سیمینار وشو. د دغه سیمینار کښې د پروګرام مطابق د ښاغلي افضل شوق د سفرنامې "اووه ګامه مزل" ښاغلي فاروق سرور د افسانو مجموعه "لېوه" او ښاغلي سعید ګوهر د "پښته خزانه فی الحقیقت" د ځېړنې په دستوره کښې په ذکر شویو درېواړو کتابونو مقالې داوړولے شوې. او بیا په آخره ورځ د ماښوتن اته بجې یوه مشاعره هم وشوه چې د سحر تر څلورو بجو جاري وه.

د پروګرام نه بخلس شل ورځې وړاندې د ښاغلي سعید ګوهر کښر ورور ښاغلے محمود ایاز یو ورځ ښېر ماښام د څو ملګرو سره زمونږ حجرې ته راغلو. کتاب "پښته خزانه فی الحقیقت" یې راکړو. او مانه یې په سیمینار کښې د شمولیت او هم په کتاب د مقالې اورولو لوظ واخستو.

د پروګرام نه یوه ورځ وړاندې زۀ د ښاغلي ډاکټر سهیل انشا

حنیف خلیل او جوهر خلیل په ملکرتیا د کوټې ( بلوچستان ) کا دي په تېرشن ورسېدم ـ او کوټې ته زمونږ د رسېدلو وړاندې کور به نیو ته د ځکښې نه خبر ورکولو له ځخه یو ځو کورپانۀ په تېرشن زمونږ منتظر وو ، چې د دوغ بر نه پس یې مونږ د صوبائي اسمبلۍ هاسټل ته ورسولو ، چرته چې زمونږ او نورو مېلمنو د استوګنې او خوراک څښاک ډېر ښۀ بندوبست شوے وۀ ـ

د پروګرام په دوېمه ورځ ما په "پټه خزانه فی الحقیقت" خپله مختصره مقاله واوروله ، خو مقاله کښې لکه چې د ټول کتاب د اعتراضونو تفصیلي جوابونه نۀ وَو شوي ، ځکه وروستو بیا دغه مقاله کښې د ترمیماتو او مکمل جواب د ضرورت له ځخه اوس ستاسو د وړاندې دا کتاب دهغه مقالې دویم شکل دے ـ

هنم چې سعید ګوهر صاحب به خپل کتاب په هغه مقصد او جذبه نۀ وي لیکلے ، په کوم مقصد او جذبه چې دۀ نه وړاندې کوم کتاب لیکلے شوے دے ـ هم دغه وجه ده چې سپوا له یو څو ځایونو نۀ خو پکښې د تعصب هغه جذبه شته او نۀ د مخالفت برائے مخالفت هغه رنګ ـ بیا د ګوهر صاحب د شرافت ، حقیقت پسندۍ او زړۀ د لوي والي اندازه له دغه حقیقته په اسانه لګي چې د هغۀ په کتاب د ښاغلي سلطان محمد صابر تنقیدي سریزه دیوبهي خوا په نغوته کتاب سره د نۀ شاملولو مشورې با وجود خپل کتاب سره شامله کړه ـ

د علمي او تحقیقي تقاضو د تکمیل دپاره په کوم کتاب تنقید د



دکتابونو د مخ کتنې په تقریب کښې همېش خلیل تقریر کوي

ﺭ چا حق دے . او باید چې هغه دا حق په څه نا څه شکل وپکاروي
خو ددې دا مقصد هم نه دے چې مونږ دې دا ﺭ څه په پټو سترګو
ومنو . ځکه نو زۀ دغه لړ کښې سعید ګوهر صاحب ته د هغۀ دا طمينان
دپاره دا مشوره ورکول خپل ادبي فرض ګڼم ، چې کۀ موصوف د نورو
ژبو خصوصًا د مشرقي ژبو لرغونې تذکرې مطالعه کړي نو بيا په
پټه خزانه د خپلو ټولو اعتراضونو جوابونه به پکښې بيا مومي .

آخر کښې د بنا غلیو ډاکټر راج ولي شاه خټک دا ئرېکټر پښتو اکېډيمي
پېښور ، سرفراز خان مروت لائبرېرين پښتو اکېډيمي او حاجي عبد الحميد خان
لائبرېرين اسلاميه کالج پېښور شکر ګذار يم چا چې د زړو قلمي نسخو
او نورو کتابونو د مطالعې په وخت ماته د ﺭ قسمه سهولت را کړو .

همېش خلیل

# پېش نامه

د محمد هوتک د پټې خزانې نوم يې تذکرې د حقيقت په ترديد کښې "پټه خزانه فی الحقيقت" يو کتاب دے چې بناغلي سعيد ګوهر صاحب ليکلے دے. او وجه يې دا ښکاري چې تر اوسه د پټې خزانې په دفاع کښې کوم کتابونه او ښهٔ ډېر مضامين ليکلي شوي دي، د هغو په لوستلو ستومانه شوے خو دے، ولې مطمئن شوے هرګز نهٔ دے.

د "پټه خزانه فی الحقيقت" په مقله زهٔ په يقين سره خو نشم ويلے چې ددې کتاب په لوستلو به هم څوک مطمئن شوي وي او کهٔ نه؟ البته دا حقيقت په ځپل ځائې دے چې کم نهٔ کم د کتاب سرېزه ليکونکے خو يې په لوستو هرګز مطمئن شوے نهٔ دے. او هم دغه حال تر ډېره حده د بناغلي اياز داودزي هم دے، چا چې دغه کتاب کښې د بناغلي سعيد ګوهر پېژندګلو کړېده.

بناغلے اياز داؤدزے يو خو کهٔ د محمد هوتک د پلار داؤد هوتک په کردار خصوصًا د پټې خزانې د ډېرو منظوماتو په يادداشت د پټې خزانې په اصليت د شک څرګندونه کوي، نو بلخوا د پټې خزانې د منظوماتو په خوند، رنګ او اندازِ بيان د سعيد ګوهر صاحب سره

متفق هم نهٔ دے. ليکي.

" په دېکښې شک نشته چې په "پټه خزانه" کښې راغلے "کلام" مختلف اسلوب لري. د زبان او بيان رنګا رنګي هم لري : نو ځوک به وي چې هغه داسې "جعلي" کتاب پخپله تصنيف کړي". (ص ۱۴)

بنا غلے اياز داؤد زے چونکې خپله دا اعتراف کوي چې هغهٔ ته خپل لس شعرونه هم ياد نهٔ وي، نو بلځوا دا اعتراض هم کوي چې د محمد هوتک پلار ته دومره کلام او بيان څنګه ياد وو؟ څو مره کله چې دا د موصوف خپل اعتراف دے، نو زهٔ يې په دغه خبره يقين لرم، کومه چې د دهٔ د خپل يادداشت پعقله ده. او زما يقين دے چې هغه به هم زما سره په دغه خبره متفق شي، چې د ټولو انسانانو ذهنونه يو شان نهٔ وي. کهٔ خوشحال خان خټک د رنتهبور په قلاء کښې د خپل قيد په دوران دوه دوه نيم سوه شعرونه چې اکثريت يې کښې د فارسي اشعارو دے "دستارنامه" کښې په ياد محض د خپلې حافظې په برکت ليکلے شي، نو آخر په داؤد هوتک د ۱۲۶ اشعارو په يادداشت ولې اعتراضونه کولے شي؟

خوشحال بابا د "دستارنامه" په آخر کښې ليکي.

" کتابونه راځنګه نهٔ وو، او کهٔ نه ښې تمکې هم به په داکتاب

---

۱ مفصل جواب د پاره وګورئ د دغه کتاب ص ~~[illegible]~~ ۶۶

کړي وي ، نظم ، نثر ، عربي ، فارسي مي به په اشنهاد
يکښې ډېر داوړي وو . اُمّا په عندیات په حافظه
ځو به داهومره څۀ کېدهٔ ، ادراک به هومره رسېدهٔ...

پټه خزانه کښې یقیناً چې غلطۍ شته ، ځنو ځاینو کښې ورسره اختلاف هم کېدلے شي . ځو بعضې هم دا قسمه غلطۍ د محمد هوتک نه وړاندې لیکلیو تذکرو کښې هم شته . او ډېرو تذکرو کښې تذکره نګارانو د یو بل سره اختلاف هم کړے دے . ولې ددغو غلطیو او اختلاف رائې باوجود بیا هم دغو تذکرو ته تراوسه چا جعلي تذکرې ونهٔ وئیل . خو تاسفاً چې د پټې خزانې یحققه هم دا غلطۍ او اختلاف ګنجائش ددغه تذکرې د پارۀ ځینې خلق ګیادي د جعلیت بنیاد کرځوي.

د پټې خزانې قلمي نسخه موجوده ده . اوس دا د پټې خزانې له حقیقته د منکرینو کار دے ، چې دا نسخه واخلي او د فرعون د نعش غونډې يې کوم سائنسدان نه د کاغذ او سیاهۍ د کال سنه ۱۳۰۳م په نهٔ ثابتولو یو داسې سند ترلاسه کړي ، چې پټه خزانه وړباندې اصلي ثابته نشي . او کهٔ داسې اوشي یا د سعید ګوهر صاحب په قول د بلې ژبې کوم عالم یا نقاد یخپلو صحیح منطقي دلائیلو جعلي ثابته کړه . او وروستو بیا په صحیح منطقي دلائیلو يې جواب اونشو، نو بیا ما هم د غالب په طرفدارانو کښې وګڼئ .

همېش خلیل
۱۳ ، مئی سنه ۱۹۹۷ء




همیش خلیل صدارت کوي - ښي لاس ته يې ښاغلی سعید گوهر او کیڼ لاس
ته يې د تقریب مشر میلمه ښاغلی عبدالجلیل وجدي ناست دی .




د ښي لاس نه حسینه گل تنها، پروین فیض زاده ملال، همیش خلیل
او محمود ایاز

# ابتدائیه

بناغلي سعيد ګوهر چې دخپل کتاب د "ابتدائیه" سرخط
لاندې د پښتې خزانې دحقیقت په ضد کال ۱۹۸۸ء کښې په پښتو
ژبه شایع شوي کوم کتاب په مدافعت کښې کومې خبرې لیکلي
دي ، هغه خو نۀ حقیقت دے ـ او نۀ داتبار او منلو وړدي
خو هم دهغۀ په الفاظو به دومره ووایم چې

" دا دغالب طرفداران شپې ته علی الاعلان
ورځ وائي ـ "

دخپل پیشرو مقاله لیکي .

" زۀ چې ناسترې کړاو زیار او مبنود ته په درنه
سترګه ګورم او لوې علمي خدمت یې بولم ـ اختلاف
ورسره کېدے شي او ورسره شوے هم دے خو په
دې دهغۀ دکار اهمیت نۀ کمیږي ولې چې دهغۀ
اکثر دلائل برقرار دي له منځه نۀ دي تللي ـ "

(ص ۳۷)

دغه ضمن کښې زۀ خپله دبناغلي سعيد ګوهر په دغو

الفاظو د هیڅ قسمه تبصره کول مناسب نۀ ګڼم . البته دغه لړ کښې د اکثرو دلائیلو د برقرارتیا په صداقت کښې چې کوم خطونه ما ته د ډاک په ذریعه رارسېدلي دي ، هغو کښې صرف محترم ډاکټر اسرار ، محترم منتظر بېټني او خصوصاً محترم ابوالخیر حلاند چې د کوهټ صاحب سره یې د هغۀ د وینا مطابق دده د کتاب " پټه خزانه فی الحقیقت " په بشپړتیا کښې د کتابونو او موادو په راغونډولو کښې په ډېر اخلاص پوره کومک هم کړے دے . د خطونو د اقتباساتو په رانقلو اوس دا فېصله زۀ لوستونکو ته پرېږدم چې ښاغلي کوهټ پخپله دغه وینا کښې ترکومه حده د صداقت او انصاف نه کار اخستے دے .

محترم ډاکټر اسرار د کال ۱۹۹۳ء د یولسم دسمبر په خط کښې د " تول پارسنګ په حقله لیکي .

" ډېر ښکلے او مدلل کتاب دے " مبارک موشه
په پښتون قوم او لیکونکو مو دا ډېر لوی احسان
اوکړو . دا کار بل چا نۀ شو کولے ."

محترم منتظر بېټنے د کال ۱۹۹۷ء د مئی د دیارلسمې ورځې په خط کښې لیکي .

" د پټې خزانې متعلق " تول پارسنګ " هغه
تول دلیلونه په ټکے په ټکے رد کړل کوم چې د پټې خزانې
د جعلي ثابتولو متعلق " پټه خزانه فی المیزان " نومې
کتاب کښې شوي دي . الله تعالیٰ دې همت درکړي

چې د هغو پاتې دليلونو جوابونه هم د خپل کتاب په
دويم ټوک کښې وکړې ـ يو بل ته به دُعا کوؤ او
وخت ته به انتظار کوؤ چې خپلو لمنو کښې څوک په
کوم نوم رانغاړي ـ"

محترم ابوالخير ځلاند د کال ۱۹۹۳ء د مئی داتمې ورځې په
خط کښې ليکي ـ

"کوم وخت چې مو تاسو نهٔ واهست لوستلي نو د
مومند صاحب په کته کړل سوو نقطو او پلټنې ته
مې نعوذ بالله د الهام په نګاه کتل او اوس چې مې
ستاسو تحقيقي زيار ، محنت ، کړاؤ بلکې علمي تبحّر
ته وکتل نو نهٔ يواځې کته په خلهٔ ورته ولاړم بلکې
بې اختياره مې لهٔ خلې نه ووتل چې خدائې دې مهٔ
کموه او

اين کار از تو آيد و مردان چنين کنند"

اوس کهٔ بيا هم د ښاغلي سعيد ګوهر د وېنا مطابق
"د هغهٔ اکثر دلائل بر قرار دي"
نو د غالب طرفدارانو ته ددې ويلو حق خو شته ولې اتفاق به
ورسره څوک وکړي ؟

---

# د
# پټې خزانې معترضين

دغه موضوع لاندې د پټې خزانې متعلق ښاغلي سعيد ګوهر
يو څو خپلو لوستونکو ته د خپل صداقت او ډېرښتينولي تأثر
په دغو الفاظو ورکوي .

" ترهغه وخته پورې زه دېو حقيقت خوښوونکي
ډېرښتين پښتون په حيث له هغه (حبيبي صاحب)
سره متفق کېدل پښتو نه بولم "

(ص ۴۲)

ولې بل ځائے ليکي چې

" زه دا نه غوارم چې د قلندر مومند
اعتراضات تکرار کړم . "

(ص ۴۳)

د ښاغلي سعيد ګوهر د دغو دواړو دعوو څخه له راځئ چې هم
د " پټه خزانه فی الحقيقت " په پاڼو کښې وګورو چې هغه څومره
دغه دعوی کښې څومره حقيقت خوښوونکے ډېرښتين پښتون دے .

او ځېنې هغه تکرار شوي اعتراضات په ګوته کړم ، کوم چې د دغه پښتو
ددهٔ نه مخکښې داپوره کړي دي . ولې بیاهم ګوهر صاحب یې پخپل
پوره بیان کښې نفي کوي .

(۱) د قدس سِرّه العزیز اصطلاح د مړو دپاره ګکاروله شي
هرکله چې محمد هوتک د پیر عبدالحکیم او د هغهٔ د مرید
محمد ایاز نیازي چې د پټې خزانې د لیکلو په وخت ژوندي
وو . استعمال کړې[۱] ده

(۲) د دوه اتیا (۸۲) کلونو په عمر داؤد هوتک ته
یوسف شپږ[۱۰۶] شعرونه څنګه یاد وو . ځکه چې د عمر په
دومره زوړ والي حافظه د کار نهٔ[۲] وي . اګر کهٔ د غه شمېر
د ګوهر صاحب پښتو ۹۹ لیکلې دے . خو دا به ووایو چې
څه په حساب کښې تېر وتے دے .

(۳) محترم عبدالشکور رشاد غوندې معتبر او مستند محقق
دخپل کتاب " لودي پښتانهٔ " دپاره دښې ډېرې پلټنې او باقاعدهٔ
زیار پس هم د پټې خزانې علاوه د بهلول لودي په درباري

---

[۱] وګورئ د دغه تکرار شوي اعتراض دپاره " پټه خزانه
فی الحقیقت ص ۸۷ او پټه خزانه فی المیزان ص ۲۰۱

[۲] وګورئ "پټه خزانه فی الحقیقت " ص ۱۱۹
او "پټه خزانه فی المیزان" ص ۲۱۷

شخصیاتو کښې د خلیل خان نیازي ذکر په هېڅ کتاب کښې نهٔ دے موندٔ لے.

(۴) پټه خزانه کښې ذکر شوي ځني اووهٔ دېرش (۳۷) کتابونه تر وسه ولې پېدا نهٔ شؤل؟

داسې نور هم تکرار شوي اعتراضات مثلاً "د پټې خزانې راویان" او "ماخذ" دي چې د ګوهر صاحب پېښرو ورباندې بنهٔ طبع ازمائي کړې ده - او بیا ګوهر صاحب هم ورباندې قلم چلولے دے.

اوس کرانو لوستونکو ته به معلومه شوي وي چې ګوهر صاحب "دیو حقیقت نوښوونکي دښتین پښتون" په دعوه کښې تر کومه حده حق بجانب دے؟

دغه نه پس په "پټه خزانه" د مستشرقینو، ایرانیانو، افغانانو او کوزې پښتونخوا د پښتنو تقریباً د شلو معترضینو کوم فهرست چې ورکړے دے. هغوکښې یو څو د ځینو ناقدینو د تنقیدي مضامینو اقتباسات نشته - او کوم لنډ اقتباسات چې شته هغه هم اکثر دلائل نهٔ لري او

---

[1] پټه خزانه في الحقیقت" ص ۱۲۰ او پټه خزانه في المیزان ص ۱۸۵ او ص ۲۲۰

[2] پټه خزانه في الحقیقت ص ۱۲۴ پټه خزانه في المیزان ص ۲۱۰

بنیاد یې محض د "شک" "مشکوک" "شکمنه" "اعتراض" "تنقید" "نیوکې" "شکونو" "زما زړهٔ دغه تسلیمولو ته تیار نهٔ شو" وغیره په الفاظو ولاړ دے او هم د دغو الفاظو په ډاډ بناغلے سعید ګوهر لیکي .

" دا شک لرونکي عام خلق نه بلکې بلاشبه
لوې علمي شخصیات دي او په دنیا کښې
لوړ مقام لري ." (ص ۹۹)

خو د دې معنیٰ دا هم نهٔ شوه چې د لویو خلقو "شک" دې په "حقیقت" واړوله شي . ځکه چې "شک" شک دے . او "حقیقت" حقیقت دے . بېشکه چې د دې "شک" څرګندونه د دوي حق دے . ولې د دې دا مطلب هم نهٔ دے چې مونږ دې دغه "شک" ته بغیر د څهٔ فکره په پټو سترګو د حقیقت رنګ ورکړو .

ذکر شویو مُعترضینو کښې د منفریډ لونز په جرمنۍ ژبه کښې د کتابچې په حواله د ډاکټر ایم . اے . زیار له خوا په "پټه خزانه" د تنقید په حقله چې کومه وېنا شوې دهٔ . په دغه

---

له " اګرکه ګوهر صاحب د خپل کتاب په ص ۱۹۹ دغه ضمن کښې لیکي

" منفریډ لونز ایم . اے زیار لیکلے دے . کېدے شي چې دا معترض مجاور احمد زیار وي خو په یقین سره نهٔ شم ویلے "

حقله ما چې د کال ۱۹۹۶ ع د ستمبر په ۲۲ شتمه ورځ یو ملاقات کښې د بناغلي ډاکټر مجاور احمد زیار (ایم - اے - زیار) نه پوښتنه وکړه ، نو په سختو الفاظو یې د بناغلي لونز د وېنا تردید وکړو. او بیا زما په خواهش یې د دغه لاندینی خط ویکلو او ما ته یې حواله کړو .

د خط مضمون دا دے .

" د پټه خزانه فی الحقیقت " نومې کتاب په ۲۸ مخ د منفرېډ لونز په جرمنی ژبه دیوې کتابچې او افغانز آف فرانتیس پاسز لومړی ټوک د ام - اې زیار له خوا د عبدالحی حبیبي مرحوم په کتاب " د پښتو ادبیاتو تاریخ " په ژبني او تاریخي حقائقو د اعتراض او د ۱۹۷۸ دیوې درې میاشتنۍ په حواله "پټه خزانه یو جعلسازي" تر سرلیک لاندې د مضمون کومه اشاره کړه له ام -اې زیار نه مقصد مجاور احمد زیار یعنې زه اوسم نو زه د دغه ټې سرو پوله تور تردید او غندنه کوم . نا ویلي دي پاتې شی چې په یاد شوي نوم له ما پرته بل کوم لیکوال هم نشته . نو نه شم ویلای چې دا الزام جوړ کړي . ام -اې زیا څوک دے ؟

ما خو د پټې خزانې د باوروالی او رښتینوالی لپاره کښې مقالې خپرې کړي او " پټه خزانه یوه لغوي خزانه" په نامه مې د ۱۹۹۶ مارچ یو ۱۱۴ مخیزه کتاب هم کښلی دی ."

احمد زیار
۲۲-۹-۹۶

هم دغه شان د محترم دوست محمد خان کامل مومند (مرحوم)
په ۱۰ ر مئی ۱۹۹۳ ء انګریزي ورځپانه " دي فرنټیر پوسټ "
کښې شائع شوي مضمون

PUSHTO LITRATURE DURING THE MUGHAL PERIOD

د دغه وینا په بنیاد چې

" ورومبے پښتون نیکوال او شاعر د چا شخصیت
او کار چې په تاریخي او عقلي اعتبار چې له
شک او شبهې ځنه لوړ دے شیخ عیسیٰ مشوانے
دے ." (ص ۴۷)

کوهر صاحب په دې غلط فهمۍ کښې پرېوتے دے چې کني
کامل صاحب ټول پښتو ادب کښې شیخ عیسیٰ مشوانے ورومبے نیکوال
او شاعر یاد کړے دے . حالانکې حقیقت داسې نهٔ دے .
کامل صاحب صرف مغلیه دور کښې هغه ورومبے نیکوال او شاعر
یاد کړے دے . حالانکې تر اوسه په تذکرو کښې د ذکر شوي
کلهم پښتو ادب متعلق چې کامل صاحب " د خپل ادب جائزه "
د سرخط لاندې کومه مقاله لیکلې او بیا یې د " میاشتني اسلم
پښتون " د اکتوبر ۱۹۵۲ ء په ګڼه کښې شائع کړې ده . دغه
مقاله کښې هغوئ امیر کروړ د ټولو نه لرغونے شاعر یاد
کړے دے . د حقیقت څېړلو د پاره د مقالې د اقتباس ولولئ
او بیا خپله فیصله وکړئ چې دا آخر په مړیو د الزام لګولو
کوم انداز دے ؟

کامل صاحب لیکي

" زمونږ په ادب کښې چې تر اوسه ټولو نه لرغونې ځينې بيا موندلې شوې دي . هغه د امير کروړ ږغ چې د منهاج سراج په طبقات ناصري جلد ا کښې د امير فولاد په نوم ياد شوې دي ) يو نظم دې چې دغه نه ټرو دولس نيمو سوو کالو ته نږدې دې . ددې نظم نه پس د لرغونوالي له پلوه د بېټ نيکه ، د ملک يار غرشين او بنکارند وې نظمونه پېښ کېدې شي . دغه نظمونه کم و زيات اته سوه کاله زاړه دي . دامير کروړ نظم د ځان د مسکوالي په ستائنه کښې دې . د بېټ نيکه نظم د خدائې تعا ستائنه او له هغه غوښتنه ده . د ملک يار غرشين او بنکارند وې چې دواړه د هندوستان د فاتح او پکښې د اسلامي سلطنت باني پښتون بادشاه شهاب الدين غوري همعصر او ملګري وو . نظمونه د سلطان په ستائنه او د غزا په جوش کښې ويلي شوي دي . په دې ټولو نظمونو کښې په هغو خوبو کښې ډېرې شته دې کومې چې د ډېر ښه ادب د پاره ضروري وي ."

بيا ښاغلي محمد نواز طائر ته خو تر ډېرې مودې دا هم معلومه نه وه چې د پېتې خزانې قلمي نسخه د کابل ارکائيو

کښې سره د نورو ډېرو قلمي نسخو موجوده ده - ډېره د حېرانۍ خبره خو داده چې د پښتو اکېډمۍ پېښور د ډائرېکټر په حېثیت د اکېډمۍ په کتب خانه کښې د افضل خان خټک د بازنامې قلمي نسخه د خوشحال خان خټک سره منسوبونکے او پټې خزانې د قلمي نسخې د موجودګۍ نه بې خبره آخر په کوم بنیاد د پټې خزانې په اصلیت شک کوي ؟

نورو معترضینو کښې د ښاغلیو پرېشان خټک او سید تقویم الحق کاکاخېل نومونه هم شامل کړے شوي دي چې د اول الذکر پحقله د ښاغلي نذیرالحق کریم په حواله " پښتون کون ؟" کښې " پټه خزانه " متنازعه کتاب بیان شوے دے - او د آخرالذکر متعلق په "پټه خزانه " د شک ښرګندونې خبره د ښاغلي درویش دراني په حواله شوې ده - ولې د ښاغلي پرېشان خټک د اردو کتاب " پشتون کون ؟ " پحقله کومه خبره چې شوې ده ، نو دا د اتبار وړ نهٔ ده - ځکه چې ما په دغه کتاب کښې د ښاغلي مؤلف له خوا داسې هیڅ خبره پېدا نهٔ کړه چې پټې خزانې ته پکښې متنازعه کتاب وئیلے شوے وي - اوکهٔ چا ماته وښودله ، نو زهٔ به دغه خپل الفاظ سره د ډېرې مننې واپس واخلم - البته د ښاغلي سیذ تقویم الحق کاکاخېل متعلق د ښاغلي درویش دراني خبرهٔ وزن لري ځکه چې تقویم الحق " د رحمٰن بابا یو بل شعر " د عنوان لاندې د ورځپاڼې " غازي " پېښور د کال ۱۹۹۲ء د نهم نومبر

په ګڼه کښې ليکي .

" ما هيڅ داسې داخلي يا خارجي شهادت نه
دے موندلے چې د پيدائش دا تاريخ پرې
غلط ثابتيږي ، بې ددې نه چې پټه خزانه
کښې دا تاريخ بل شان دے ، نو"پټه خزانه"
به ترکومې منو ؟ اوولې ؟ "

خو بيا هم ددغه تحرير نه تقريبًا دوه نيم کاله پس موضوف
په ۲۷ ، مارچ ۱۹۹۵ء کښې د پښتو رېډيو سټېشن نه د ښاغلي
پروېز مهجور سره د يوې ادبي مرکې په موقع د پټې خزانې متعلق
دهغه د يو سوال په جواب کښې ووئيل -

" ما ته داسې ښکاري چې ددې کتاب څه بنيادشته
هغه نو چې کوم سړي دا کتاب ليکلے دے هغه د يو
بادشاه په حکم په ټوله پښتونخوا کښې ګرځېدلے
دے او د شاعرانو حالات ئې راجمع کړي دي او د بادشاه
حکم به ته منې ( دلته په يو لفظ نيم پوهه نه شوم )
اوکه نه مومې نو راپيدا کوې به يې . اوکه نه
پيداکيږي ، نو جوړوې به يې ، نو دا امکان هم
کېدېشي چې داکوم څيزونه قلندر صاحب ته صحيح
نه ښکاري دا هغه حصّه وي چې کومه هغه سړي
ته هم صحيح نه ښکاري - اوليکلي يې وي ، ځکه چې
هغه خو بادشاه ته دا ټولول هرڅه يې چې کول. بيا

دا نقل در نقل را رسیدلے دے - یعنې هغه اصلي مسوده
نشته . دهغې نه یو نقل راغلے دے . او نقل در نقل
کښې الفاظ هم بدلیږي او معنی کانې یې هم بدلیږي.
نو یو امکان دا هم لري چې دبکښې ډېره حصّه بدله
شوې وي - ځکه چې د قلندر صاحب کتاب سړے
ګوري ، نو وائي چې صحیح خبره کوي - او بیا چې د
هغوئ خبرې سړے ګوري ، خصوصًا د حبیبي صاحب
شخصیت ته سړےګوري چې هغه داسې د دروغو سړے
نۀ وَه ، نو سړے زړهٔ کښې وائي دغه څۀ چل دے؟
زما تصوّر دادے ، او څنو مستشرقینو خیال هم
دادے چې دبکښې اصل کښې دوه درې ځا یونو
کښې ګړبړ شوي دي ، نو داکتاب واقعي ټول خو
صحیح نۀ دے .او اوس خو ثابته شوه چې ډېر
تاریخونه یې صحیح نۀ دي . او افغانستان والاوَ
هم دا خبره ومنله او ټول نه ټول زما په خیال
غلط نۀ دے . او حبیبي صاحب دې خدائے وبخښي
ډېر لوې سړے وَه ، ډېر قابلِ قدر سړے وُه.
او لوئ محقق او ډېر عالم سړے وَه . دهغۀ پۀ
شخصیت باندې داشبه کول هم مناسب نۀ ښکاري."

اوس کۀ د ښاغلي سید تقویم الحق کاکاخېل د ورځپاڼې
"غازي" او دېړیو مرکې ذکر شوي اقتباسات وڅېړلے شي، نو

دواړو کښې خو را ډېر واضحه فرق که یو خوا دستائیلي نقاد په موقف کښې د تبدیلۍ دا رجحان د موصوف په صداقت او ایماندارۍ رڼا اچوي ، نو بل خوا هم د بناغلي سعید ګوهر په الفاظو

" دا هم د پښتنو د ذهني ترفع او خاص علمي پېشرفت یو لوی ثبوت دے - او زما په نزد د پښتنو د سرلوړۍ څه کم معیار نه دے ."

هم دغه لړ کښې بناغلے سعید ګوهر د بناغلي ډاکټر قابل خان افریدي د تهیسس په حواله یو خوا د بناغلي ډاکټر شېرزمان طائزي د یو مضمون نه د خېلو لوستونکو دپاره دخپل مقصد دا برخه خو رانقلوي چې پېښور پوهنتون د اېریا سټډي سنټر (سنټرل اېشیاء) نه د بناغلي ډاکټر قابل خان افریدي د حمزه بابا پحقله هغه مقاله مني چې " پټه خزانه " د اعتبار وړ نه ده - ولې د بناغلي طائزي هم د ذکر شوي مضمون دا برخه خپلو لوستونکو ته نه وړاندې کوي . د مضمون دا برخه د محترمې بي بي مریم د ایم . فل د مقالې متعلق په دغو الفاظو ده .

" دا شجره روانه ده ، خو عجیبه دا ده چې پښتو اکېډمي بي بي مریم ته د پښتو نثر پحقله په هغه مقالې د ایم - فل ډګري ورکوي چې د پټې خزانې

مرسته کوي -

د اپریا سټډي سنټر (سنټرل اېشیا) د ډاکټر قابل خان افریدي هغه مقاله چې پښتو خزانه د وړ نه منې پاس کوي ، هرکله چې د پېښور پوهنتون د وه منلې ادارې په مخالفو لارو روانې دي ، یو عالم به د بېکښې کومې نتیجې ته رسي ."

میاشتنی " بنګلا " پېښور
جولائی ۱۹۹۶ء

# پټه خزانه
# او عبدالعلي اخونزاده

---

د پورته موضوع په خپل تحريري بحث کښې ښاغلي سعيد ګوهر د جيبي صاحب او څنو نورو ليکوالو د تحريرونو اقتباسات رانقل کړي دي - او د غو ټولو ليکوالو کښې صرف د حافظ خان محمد تحرير ته په اهميت ورکولو او د " کسټے کلان " د دويم ماخذ په حواله دا ثابتول غواړي چې پټه خزانه د عبدالعلي اخونزاده په لائبريرۍ کښې موجوده نۀ وه - او د حافظ خان محمد نه علاوه د نورو ليکوالو د تحريرونو اقتباساتو ته د اهميت نۀ ورکولو په ضمن کښې ليکي .

" زۀ په دغو بيانونو باندې هيڅ تبصره نۀ
کوم ولې چې دا ټول زما په خيال هيڅ ارزښت نلري
دا له يوه بله اورېدلي او نقل درنقل په
لږ و ډېر بدلون سره تکرار خبرې دي او بس"

(ص ٦١)

چونکې خپله د جيبي صاحب د تحريرونو له اقتباساتو دا حقيقت

ډېر واضح دے چې "پټه خزانه" د عبدالعلي اخونزاده په کتابتون کښې موجوده نهٔ وه . ځکه نو په دومره وړه بحث د سرخوږي هيڅ ضرورت نهٔ وهٔ . او صرف د حبيبي صاحب د تحريرونو اقتباسات کافي وو .

خو بيا هم د "کسټے کلان" د دويم ماخذ له مخه کـــهٔ حافظ خان محمد د بناغلي سعيدګوهر په خيال د پټې خزانې د مطبوعه نسخې نه د شپږو ادبي شخصيتونو متعارف کولو استفاده کړې هم وي ، بيا هم په کال ۱۹۶۲ء کښې پېل کړې تذکره کښې د مرګ تر وخته (اګست ۱۹۵۸ء) په "پټه خزانه" د کومې اشتباه او شک نهٔ کولو او په دغه حقله د څهٔ نهٔ ليکلو نه دا ثابتيږي چې حافظ صاحب هم پټه خزانـــه يو حقيقت ګڼلو . ځکه چې د مرحوم په ژوند د پټې خزانې د حقيقت خلاف ډېر څهٔ ليکلي شوي وو .

---

# محمد بن داؤد هوتک

د کتاب د غه برخه کښې بناغلي سعید ګوهر د محمد هوتک د شخصي وجود نه د انکار په ضمن کښې چې کومې خبرې کړي دي. ددې مقاله به دومره قدرې وو ایم چې ګوهر صاحب په "پټه خزانه" د کومو معترضینو د تحریرونو فهرست په خپل کتاب کښې پیش کړے دے. د غو ټولو کښې یو معترض هم د محمد هوتک د شخصي وجود نه انکار نهٔ دے کړے. د د غه فهرست وړومبے معترض جارج مارګن سټرن دے اوکهٔ عزیز لوني، دوناله ابن وېلبر دے اوکهٔ ډاکټر علي جعفري دے، محمد افشار یزدي دے اوکهٔ دوست محمد خان کامل مومند، مولانا محمد قدوس هاشمي دے اوکهٔ خیال بخاري، نواز طائر دے اوکهٔ ډاکټر شېر زمان طائز ے.

خو بناغلے سعید ګوهر په د غه ګناه د محمد هوتک له شخصي وجود نه انکار کوي چې ددهٔ " په باب تاریخونه یو مخ بې خبره او پټه خله دي " کهٔ هم په د غه ګناه

---

ے ص ۴۴ - ۴۹

دیو سري شخصي وجود مشکوک کېدلے شي . نو بیا خو به دتېمورشاه درّاني د دور د پښتو دوه صاحبِ دیوان شاعرانو بېدل او خوږدل شخصي وجودونه هم مشکوک شي . ځکه چې ددغو دواړو په باب هم دانکشاف تر وخته تاریخونه بې خبره او پټه خلۀ دي او لکه د محمد هوتک شخصیت چې دپټې خزانې علاوه بله هیڅ صحي او معتبره حواله نۀ لري ، بعینهي د ذکرشویو دواړو شاعرانو شخصیتونه هم ددوئ له دیوانونو علاوه بله هیڅ صحي او معتبره حواله نۀ لري . خو اوس کۀ څوک راپاسي او دا ووائي چې ددغو دواړو شاعرانو دیوانونه هم لکه دپټې خزانې جعلي دي ، نو ځکه لکه د محمد هوتک بن داؤد د دوي شخصي وجودونه هم مشکوک دي . اگرکۀ دغه کس ته دخپل خیال دڅرګندونې حق شته . ولې کوم دعقل او فکر خاوند به یې ورسره ومني ؟

یو بل اعتراض دا هم شوے دے چې د محمد ایازخان نیازي په تذکره کښې میا عبدالحکیم چې دپټې خزانې د تکمیل نه پس هم لس یولس کاله ژوندے وۀ . محمد هوتک دۀ سره " قدس سِره العَزِیز " لیکي . حالانکې دا د مړو سره مخصوصه دعائیه کلمه ده . دا اعتراض وړاندې یو بل معترض هم کړے دے . او ما یې تفصیل سره جواب کړے دے . ددغه

---

له تفصیل دپاره وګورئ " تول پارسنګ " ص ۲۰۳ - ۲۰۴

اعتراض نه سعيد ګوهر صاحب د ا ثابتول غواړي چې "پټه خزانه" د محمد هوتک یا د هغهٔ د زمانې نه پس چې میا عبدالحکیم وفات شوے وه چا بل چا لیکلې ده ، ځکه ورسره ذکر شوي دعائیه کلمه هم ویکلے شوه - خو د شیخ بدرالدین سرهنديؒ دکتاب " حضرات القدس " نهٔ معلومیږي چې دا مخصوصه دعائیه کلمه د مړو نه علاوه ژوندو د پاره هم پکاروله شي . ځکه چې ستائیلي شیخ پخیل ذکر شوي کتاب کښې دغه دعائیه کلمات د شیخ عبدالحئؒ په باره کښې د " ذکر شیخ عبدالحئ قدس سرهٔ " د عنوان لاندې لیکلي دي . حالانکې د " حضرات القدس " د تکمیل کال سنه ۱۰۵۷ھ دے، هرکله چې د شیخ عبدالحئؒ د مړینې کال سنه ۱۰۷۰ھ دے - یعنې څهٔ وخت چې شیخ بدرالدین سرهنديؒ شیخ عبدالحئؒ د "قدس سرهٔ" په دعائیه کلمه مخاطب کړے دے - د غه نه پس هم حضرت شیخ عبدالحئؒ دیارلس کاله ژوندے وهٔ .

ډیره عجیبه خبره نو داده چې یو خوا خو فاضل تنقید نګار "پټې خزانې" نه د محترم عبدالحئ حبیبي تالیف وائي - ولې بل خوا دا هم وائي چې حبیبي صاحب یو

" قد آور ، معتبر او مؤثق علمي ادبي شخصیت دے . . داسې عبقري او نابغه شخصیات کله کله بلکې ډیر کم پیدا کیږي ."

(ص ۱۸)

اوس کۀ چرې واقعي د " قدس سره العزيز " دغه دعائيه کلمه د مړو دپاره پکاروله شي . او پښتنه خزانه واقعي د محترم حبيبي صاحب تاليف دي ، نو بيا دغه قدآور معتبر ، موقر ، علمي ، ادبي او نابغه شخصيت ولې دداسې کبيرې ګناه مرتکب شو چې د بنا غلي سعيد ګوهر له نظره هم پټه نۀ شوه ؟

---

# حاجي محمّد اکبر هوتکي

---

دکتاب دغه برخه کښې دا اعتراض کولے شي چې "پټه خزانه" نهٔ نو د حاجي محمد اکبر خان هوتکي دپاره او نهٔ د محمد عباس کاسي په قلم کتابت شوې ده - وجوهات يې دا بنودلي شوي دي -

(۱) آيا د حاجي محمد اکبرخان هوتکي دپاره پرته دپټې خزانې دکوم بل کتاب نسخه هم نقل کړے شوې ده ؟

(۲) دغهٔ (حاجي محمد اکبرخان هوتکي) کتب خانه کښې د محمد عباس کاسي په قلم کتابت شوې کومه بله خطي نسخه هم شته اوکهٔ نه ؟

(۳) دريم اعتراض دا دے چې څهٔ وخت حاجي محمد اکبرخان هوتکي دپټې خزانې د دريم نقل نه يو کال پس دخپلو ټولو کتابونو او خطي نسخو سره کوټې نه قندهار ته تللو نو صرف هم دپټې خزانې خطي نسخه ترې پاتې کېدله ؟ حالانکې دغه وخت د سردار مهردل خان مشرقي دپاره دپټې خزانې ليکلې شوې دويمه نسخه هم کوټه کښې موجوده وه. ولې

کوټه کښې صرف د حاجي محمد اکبرخان هوتکي د پاره کتابت شوې نسخه خو پیدا کیږي او هغه دوېمه نسخه تر اوسه کوټه کښې پیدا نهٔ شوه .

ترکومه چې د وړومبي اعتراض تعلق دے ، جواب یې دادے چونکې " پټه خزانه " د حاجي محمد اکبرخان هوتکي د خپل یو نیکهٔ تالیف وهٔ . ځکه نو د هغهٔ په نقل کولو کښې د موصوف دلچسپي یوه فطري تقاضا وه .

د دوېم اعتراض جواب داد ے . ضروري نهٔ ده چې یو کاتب دې د چا د پاره یوه قلمي نسخه کتابت کړي ، نو نورې دې هم ورته نقل کړي . داسې ډېر مثالونه شته چې د یو کاتب په لاس صرف هم یوه نسخه نقل شوې ده او بس . مثلاً کاتب بهارتوي چې د بي بي خیر خاتون د پاره د "خیر البیان" کومه قلمي نسخه نقل کړې ده . دغه کاتب د بي بي خیر خاتون د پاره د بایزید روښان د کوم بل کتاب نسخه هم نقل کړې ده او کهٔ نه ؟ یا د واصل روښاني د دیوان کومه قلمي نسخه چې ملا عطاء الله د محمد وقاص خان د پاره لیکلې وه ، ایا دغه کاتب د محمد وقاص خان د پاره کومه بله نسخه هم لیکلې وه او کهٔ نه ؟ دغه شان کاتب کریم داد چې د محمد زمان اوخانزمان د پاره د محمدي صاحبزاده د " مستغاث " کومه قلمي نسخه د اصل نسخې نه نقل کړې ده ، دغه کاتب د ذکر شویو کسانو د پاره د محمدي صاحبزاده یا بل کوم شاعر د دیوان نسخه هم نقل

کړې دہ او کهٔ نه ؟ او کهٔ داسې شوي وي ، نو کوم صاحب دې وښائي ؟

د دریمې خبرې جواب داد ے چې ممکنه ده د ځینې اهمیت له مخه دا نسخه د حاجي محمد اکبر خان هوتکي نه د هغهٔ کوم خپلن یا دوست د مطالعې دپاره وړې وي . بیا د غه سړے مړ شوے وي ، یا کومې بلې حادثې په وجه دا نسخه په کوټه کښې پاتې شوې وي . د غه شان ډېرې واقعې شوې دي . او لکیا دے نن هم کیږي .

یو ښودنے مثال یې د مرحوم دوست محمد خان کامل د تالیف " خوشحال خان خټک " هم دے . کال ۱۹۵۱ ء کښې د کامل صاحب دا تالیف په اردو ژبه د " ادارهٔ اشاعت سرحد پېښور " له خوا چاپ شو . کامل صاحب په دغه موضوع د ځینې پرله پسې مطالعې له برکته وخت په وخت د ذکر شوي تالیف پخپله ذاتي نسخه کښې د کتاب په حاشیو ډېر ترمیمات وکړهٔ . او دا یې خیال وَه چې دوېم اشاعت کښې د کتاب د غلطیو د اصلاح سره سره نوې انکشافات هم د کتاب د تکمیل سبب شي . خو د مرحوم د زوړې بناغلي ذاکر حسین یو دوست میا ایاز گل کاکاخېل چې د ریلوے محکمه کښې په یوه ښهٔ عهده فائز وَه ، ته د فوري ضرورت له مخه د هغهٔ په ډېر اصرار او زړ تر زړه واپس کولو په وعده کامل صاحب د خپل شرافت او فطري خاصیت او میا ایاز گل کاکاخېل د ضرورت په وجه دخپلې دغه ترمیم شوې

نسخې په ورکړه مجبور شو - وجه يې دا وه چې دا کتاب دغه وخت نایاب وه - او چرته هم بازار کښې دستیاب نهٔ وه - بیا دمیا ایازګل د ضرورت د تکمیل د ممکنه وخت نه هم ډېر وروستو ذاکرحسېن د کتاب تر لاسه کولو دپاره دوه ځله لاهور ته هم ورغلو ( دغه وخت میا صاحب د خپل سرکاري ملازمت په سلسله کښې لاهور ته بدل شوے وه ) ولې هره وجه چې وه میا صاحب کتاب واپس نکړے شو - ځکه نو زهٔ یو ځل بیا خپله دغه خبره تکراروم چې د داسې متوقع واقعاتو د حقیقت له مخه د حاجي محمد اکبرخان هوتکي نه هم د پټې خزانې قلمي نسخه د خپل اهمیت له مخه لکه د میا ایازګل کاکاخېل چا د خپل ضرورت دپاره وړې وي - او بیا په کومه نامعلومه وجه هم د هغه سرې سره کوټه کښې پاتې شوې وي -

اوس پاتې شوه دا خبره چې د سردارمهردل خان دپاره د پټې خزانې دوېمه لیکلې شوې نسخه کوټه کښې د موجودګۍ باوجود تر اوسه ولې پېدا نهٔ شوه ؟ زما په خیال ددې لنډ جواب داد ے چې د شیخ ملّي د دفتر هغه قلمي نسخه چې خوشحال بابا يې هم ذکر کړے دے ، تر اوسه سوات یا کوم بل ځائے ولې پېدا نهٔ شوه ؟ یا د خوشحال بابا خپل ځنې کتابونه لکه "هدایه" ، "آئینه" "فرخ نامه" او "بیاض" چې کامل صاحب يې سنهٔ تفصیل سره پخپل اردو تالیف "خوشحال خان خټک" کښې هم ذکرکړے دے ، تر وسه چرته هم ولې پېدا نهٔ شول ؟ یاده دې

وي چې د "بیاض" ځنې اقتباسات افضل خان ختک هم پخپل تالیف "تاریخ مرصع" کښې ځائے پځائے رانقل کړي دي -

بیا محترم سلطان محمد خان صابر ماته داهم وئیلي دي چې "کوټه کښې یو وخت یو سړي ماته دپټې خزانې قلمي نسخه راوړې وه، خو چونکې هغه وخت ماته دپټې خزانې د اهمیت علم نهٔ وهٔ - ځکه مې څهٔ توجه ورنهٔ کړه - بیا ډېره موده پس دپټې خزانې په اهمیت دپوهېدلو پس ماکهٔ دهغه سړي د موندلو ډېره لټه اوکړه خو پېدا مې نهٔ کړو -"

ایا اوس دا ممکنه نهٔ ده چې محترم صابر صاحب دکومې نسخې ذکر کوي - دا دپټې خزانې هم هغه دوېمه نسخه وي کومه چې د سردار مهردل خان مشرقي دپاره لیکلے شوې وه؟ نور تفصیلات کهٔ څوک غواړي د صابر صاحب نه کولے شي شکر دے لا ژوندے دے الله تعالیٰ دې نور هم ډېر عمر ورکړي -

---

# محمّد عباس کاسے

دکتاب دغه برخه کښې د توجه وړ خبره داده چې بناغلي کوهر

د محمد عباس سره د" کاسے" په ليکلو دچل پښتو د هغه اعتراض

ترديد کوي کوم چې هغهٔ په "پټه خزانه " د وړومبي وار په

موقعه د لفظ " کاسي " او " کانسي " په ضمن کښې کړے دے.

بيا وړاندې د محمد عباس کاسي په حقله ليکي .

"حقيقت داد ے چې د محمد عباس کاسي په ژوند

او کار روزګار باندې هيڅوک نهٔ دي خبر، نهٔ

څهٔ ليکنه شوې ده . " (ص ۹۶)

زما په خيال دلته هم لکه د محمد هوتک سعيد کوهر صاحب

د محمد عباس کاسي د شخصي وجود قائل نهٔ دے او يو فرضي

کاتب يې ګڼي . خو آيا زهٔ هم دا پوښتنه کولے شم چې پرته

---

له مياشتنۍ " پښتو" پښور مارچ ۱۹۷۶ء ص ۲۷ او

" تول پارسنګ " ص ۱۴

د محمدعباس کاسي آخر دکوم کاتب په ژوند او روزګار څوک خبر دي؟ یا وربانديې چا څهٔ لیکنې کړي دي ؟ حالانکې د محمد عباس کاسي په وخت هغهٔ نه وړاندې او بیا وروستو هم ډېر بنهٔ بنهٔ کاتبان تېر شوي دي ، چې صرف نمونه یې اوس په کتابت کړیو دیوانونو کښې خو محفوظ دي ، ولې د ژوند اوکان روزګار پحقله یې کهٔ څوک ډیوه په لاس واخلي ، نو هم دغه شان به د ناکامیو سره مخ شي ، لکه نن چې د محمد عباس کاسي دژوند او کار روزګار پحقله د ناکامیو سره مخ دي .

---

# دَ

# پټې خزانې دیک اسلوب

د پټې خزانې د اسلوب له مخه سعید ګوهر صاحب دا ثابتول غواړي چې د دې اسلوب یو شان نهٔ دے ، بلکې دا ستماسـل یا اسلوب چرته خو تعقیدي ، پېچیده ، ثقیل ، دقیق او معرب دے او چرته بې تعقیده ، سلیس او بېساخته دے او د خپل هم دغه بیان په بنیاد دهغهٔ دا خیال دے چې دا نسخې ته د قدیم رنګ ورکولو یو شعوري کوشش دے . او خپل هم دغه اعتراض لـه خپلې خوا په تصدیق کښې یې د پـټې خزانې نه یو څو اقتباسات هم رانقل کړي دي -

د ګوهر صاحب د دغه اعتراض په جواب کښې د پټې خزانې نه وړاندې او بیا وروستو هم لیکلو شویو تقریبـاً هر قلمي کتاب کښې داسې ډېرې تعقیدي او بې تعقیده جملې او پېراګرافونه موجود دي چې د دهٔ د دغه اعتراض تردید کـوي خو دغه ضمن کښې د کتاب په بې ځایه درنولو او لوستونکیو

د وخت د ضياع پېښ نظر د اخون درويزهٔ د "مخزن الاسلام" د يوې قلمي نسخې[1] نه د بې تعقيده او تعقيدي جملو په پېښ کولو اکتفا کوم . زما يقين دے چې کهٔ د غه ضمن کښې کوم صاحب څنې نورې قلمي نسخې هم مطالعه کړے وے ، نو د دغه اعتراض ضرورت به نهٔ وهٔ وړېښ شوے . او دا حقيقت به هم ورڅرګند شوے وهٔ چې هم د يوهٔ سړي د ديک د اسلوب دا دواړه شکلونه ممکن کېدلے شي .

د بې تعقيده ، سليسو او بې ساخته وُ جملو وړومبے مثال .

" الف اسم د الله دي - دي لټکۍ مبرا دي
هر چه پدا اسم مشغول ش هغه سالک الى الله دي .
هر سالک چه موافق پشريعت ثې لحديث لقرآن دي
د دېر جهان پېشوا دي - هر چه خلاف کاند لدوي
هغه پيکمر کښي رسوا دي .... .... "

## دويم مثال :-

" الله يو دي بې نياز دي - لهر چا سرپ
راز دي کل عالم د ده محتاج دي که محمود
دي که اياز دي "

---

[1] د مخزن الاسلام قلمي نسخه نمبر ۹۵ پښتو اکېډيمي پېښور يونيورسټي

## دریم مثال :-

" پنام د حق اغاز کړم - اوس لحق سرب
راز کړم - دي رحمن رحیم خداي دي د
طاعت قدم ب ساز کړم ."

او دادي د تعقیدي ، پیچیده او ثقیلو جملو مثالونه -

(۱) " پس لجمله پیغمبران د صدیق اکبر بزرګي د پدا
خلق پداوار - هم پنور صحابه کښې د بې شک پردوي
پر هلک د پرواړ - "

(۲) " ل چه لطف کړم وکا عصیان به لد وزخ روخ
خلاص کا - ګناه بې پاک کا او کافر به لرحمت
لوري ایاس کا - لک به نور یوه نیزه شي هم زمکې
شي سر ولین د هرچا به د عمل خیري پلاس کا هر
مومن چه پرهیزکار وي ګناه بیارت شوي لک به
تله ودریږي دي به خپس لهغه عذاب خلاص
کا ..... "

دغه شان د پښتو خزانې دیوبل تحریري اسلوب
پحقله هم دا اعتراض کوي چې

| | |
|---|---|
| کله نیسکي | میند لے |
| کله نیکي | موند لے |
| کله نیسکي | شوقمن |

کله لیکي:-          شوقمند

داځکه چي اوس د "مخزن الاسلام" د تحریري اسلوب د غه اړخ ته هم متوجه شو - د محمد هوتک د "میندلے" "موندلے" "شوقمن" او "شوقمند" په تحریري فرق د اعتراض په جواب کښې د اخون درویزه "څنکدن"، "ځانکندن" "وم" او "هم" وغیرو.

کله لیکي:-

د درویزه ایمان بچاي لري اي خداي چه پوقت
د څنکدن ني لزوال وير نشي -

کله لیکي:-

کله لیکي:- کتر ځانکدن د تیر پسلامت کړو ویره مکړ چه ما
وي د تاجنت دے -

کله لیکي:-

"زاري کا نړي اي خلقو اوس وم وقت دي دزاري"

کله لیکي:-

درویزه چه څه ویښیږي - شریعت بیانوي شریعت
ې قبول کړي هم په سترګو هم په ځان دي -"

---

# دپټې خزانې او تذکرة الاولیاء تحریر او الفاظ

---

ښاغلی سعید ګوهر لیکي.

"زه دې خبرې ته ښې حېرت وړ یم چې محمد هوتک پخپل تالیف پټه خزانه کښې د سلیمان ماکو د تذکرة الاولیاء حواله څو هیڅ ځای نه ورکوي. لاکن په تحریر او املا کښې ښکاره مماثلت ورسره لري."

(ص ۱۰۸)

د "تذکرة الاولیاء" د حوالې نه ورکولو وجه داکېدلے شي چې ددغه کتاب علم به محمد هوتک ته نه وو. بیا د تذکرو په تاریخ کښې داسې ډېر مثالونه شته چې نورو ډېرو تذکره نګارانو هم پخپلو تذکرو کښې د قدیمو تذکرو ذکر نه دے کړے. لکه امیر دولت شاه سمرقندي پخپله تذکره "تذکرة الشعراء" کښې د وړاندینو ډېرو تذکرو ذکر نه دے کړے

او ډېره عجيبه خو دا ده چې د نظامي عروضي سمرقندي په تاليف "چهار مقاله" او دولت شاه سمرقندي "تذكرة الشعراء" كښې د ابو القاسم فردوسي كوم ذكر دے د اولنذكو تاليف د حوالې نه ورکولو سره دغه ضمن کښې چې د دواړو تاليفاتو د تحرير كوم مماثلت دے - هغه كټ مټ د سليمان ماكو د تذكرة الاولياء" او محمد هوتک د "پټه خزانه" غونډې دے.

راځئ چې دا هم لږ وڅېړو.

| تذكرة الشعراء (۸۹۶ هق) | چهار مقاله (۵۵۰ هق) |
|---|---|
| كه فردوسي رافضي است. | (۱) كه او مردي رافضي است. |
| (ص - ۴۳) | (ص - ۹۷) |
| فقاعي خريد وبست هزار درم ديگر به مستحقان قسمت نمود. | (۲) فقاعي بخورد وآن سيم ميان حمامي وفقاعي قسم فرمود. |
| (ص - ۴۴) | ص - ۹۹ |
| شتران نيل بدروازهٔ دودبار طوس بهان بود وبيرون رفتن جنازهٔ فردوسي از دروازهٔ رزان بهان. | (۳) از دروازهٔ دودبار اشتر در مى شد وجنازهٔ فردوسي بدروازهٔ رزان بيرون همى بردند. |
| (ص - ۴۵) | (ص - ۱۰۳) |
| گفت شاهنامه بنام تو ميكنم - كه حكايت نياكان تست و بر جهت حق ازوتي آتشكده (ص - ۴۸۵) | (۴) وگفت من اين كتاب را از نام محمود بنام تو خواهم كردن - كه اين كتاب همه اخبار وآثار جدان تست چهار مقاله . (ص ۱۰۰) |

(۵) گویا پدرش با غبان چهار باغ موسوم به فردوس بوده

(اتشکده ص ۴۸۶)

و چهار باغی داشته فردوس نام و پدر فردوسی باغبان آن مزرعه بوده

(تذکرة الشعراء ص ۴۲)

اوس ددغه تحریري مماثلت باوجود که چرې د فارسي دغه تالیفات د ځان ځانله تذکره نګارانو کېدلې شي ، نو تذکرة الاولیاء" او "پټه خزانه" دې ولې د دوو بېلو بېلو مولفانو کارنامې ونه ګرځولې شي ؟

بیا دا اعتراض کوي چې

" د تذکرة الاولیاء په اتو مخونو کښې وګورئ چې دکتاب نوم ، د مولف نوم ، دهغه د پلار نوم ، ذات تپاهو بې او وخت او سنه هرڅه موندلې شول. یوه داسې نکته نشته چې کمې یې محسوس شي اخر ولې؟"

(ص ۱۱۱)

ددغه اعتراض جواب دخوشحال بابا د " نام حق " پښتو منظومې ترجمې ددوه پاڼو یعنې څلورو وروستیو مخونو هغه انکشاف دے چې پکښې دکتاب نوم ، د مترجم نوم ، د ترجمې وضاحت او وخت یا سنه هرڅه موندلې شي .

دغه نه یې بل اعتراض کښې وایي .

" داولې او نشو چې د نسخې د پاڼې صفحات پیدا شوے دے یا د منځ یا یوه د سر او نورې ګډې وډې" (ص - ۱۱۱)

څوکهٔ د سعید ګوهر صاحب نه هم څوک دا پوښتنه وکړي چې آخر د ذکر شوي "نام حق" د وروستیو دوه پاڼو علاوه د دغه کتاب د منځ، د سر او نورې ګڼې دوې پاڼې ولې بیا نشوې نو دوئ به یې څهٔ جواب وکړے شي ؟

هم د دغه باب وړاندې اعتراض کښې وائي چې "د تذکرة الاولیاً" پاڼې د رکابونو له مخه په ظاهره څو ګڼې دوې او بې ترتیبه دي، ولې د مضمون د تسلسل او شعرونو د بشپړوالي له مخه بې ترتیبه نهٔ دي، ځکه نو د بناغلي ګوهر په خیال دا د پخوانو خطي نسخو دیک او طریقې نقل دے.

حقیقت هم دا دے چې د "تذکرة الاولیاء" پاڼې آخره کښې د خپلو رکابونو له مخه مسلسل او ټولې د سر پاڼې نهٔ دي خو د شعرونو او مضمون په تسلسل کښې ګوهر صاحب ته غلط فهمي شوې ده. اګر کهٔ په ورومبۍ صفحه رکاب "ب و" پرله پسې د دویمې صفحې تائید نهٔ کوي، خو تر یو حده د مضمون د تسلسل وجه دا ده، چې دا مضمون چونکې هم د یو شخصیت بیټ نیکهٔ متعلق دے، ځکه نو کهٔ دا پاڼه د موجوده موقعې هم نهٔ وي، نو اصول دا دي چې دا پاڼه دې هم دلته تصوّر کړے شي. ځکه نو د ګوهر صاحب دا اعتراض بیځایه ځکه دے چې وړاندې بیا په دویم مخ د زړې قاعدې مطابق د رکاب د نیشتوالي علاوه چونکې دویم او دریم مخ په یوه پاڼه سره لاندې باندې دي، ځکه نو دغه ضمن کښې د مضمون په تسلسل یا تکمیل د

اعتراض هم او سوال نهٔ پیدا کیږي - دغه شان څلورم او پنځم مخونه هم په یوه پاڼه دي چې د کتاب تر منځه نهٔ لري او صرف د شهاب الدین غوري ذکر یې را احاطه کړے دے. شپږم او اووم مخونه هم تر منځه د کتاب نهٔ لري چې د حضرت بختیار کاکي ځانله ذکر کوي.

پاتې شوه د شعرونو د پیژندګنې خبره، نو دې کښې هم د کتاب سوال له منځه وتلے دے - شعرونه د بهټ نیکهٔ دي او کهٔ د ملک یار غرشین دي یا کهٔ د بختیار کاکي - دا هم بیا ځان ځانله پاڼو دي او تر منځه یې د کتاب نښته. ځکه نو په دغه وجه د مخونو د پاڼې الفاظ یا رکابونو ته مصنوعي ویل د بنا غلي ګوهر د قلمي اشارو د قاعدې له حقیقته په ناواقفیت دلالت کوي - ولې د ډېر حیرت خبره خو دا ده چې د سعید ګوهر صاحب پېښور په خپله یوه منظومه "نعره" د سلیمان ماکو "تذکرة الاولیاء" او ملک یار غرشین په حقیقتونو د تصدیق مهر لګولے دے او ملک یار غرشین د پاړکو دیوې مصرعې په بنیاد یې د خپلې منظومې ناړې مناره ودروله ده - او لیکي -

## نعره

---

د ملک یار غرشین دیوې مصرعې منته کوم

---

ورونو! ملګرو خوارې کښانو
اے مظلومانو اے مجبورانو!
اے مزدورانو! خوارې کښانو

په دې څه پوه يې چې داڅه چل دے
ستاسوله وېرې په چا زلزل دے
نن مو يرغل دے
نن مو يرغل دے

(۲)

ستاسو خولو نن خلق خوږې کړل
واړه زردار مو ذرې ذرې کړل
چې يې پرده کړئ تاسو پرې کړل

ستاسو په بند دے هرڅوک چې غل دے
راشئ يو ځائے شئ څښتن مو مل دے
نن مو يرغل دے
نن مو يرغل دے

(۳)

ځان ورته څېر کړئ زنځير ماتېږي
زور د زردار او امير ماتېږي
نن د ملاګانو يې تېر ماتېږي

لاس به يې شل شي چې لاس کښې شل دے
واک که د بل دے سر خو مو خپل دے
نن مو يرغل دے
نن مو يرغل دے

(۴)

تاسو نه مځکښې هم مزدوران وو
هغو هم داسې حریان دریان وو
خو چې یو ځائے شول نو بیا ودان وو

ستاسو هم کورئ هغه مزل دے
د مشرانو په پل موپل دے
نن مو یرغل دے
نن مو یرغل دے

(۵)

هغه دے کورئ سبا ښکاریږي
د ظالمانو قضا ښکاریږي
دا دے ښکاریږي صفا ښکاریږي

څه مو چې زده دي چې کوم عمل دے
دا یې موقعه ده دا یې محل دے
نن مو یرغل دے
نن مو یرغل دے

(۶)

یو اځې نه یې ډېر مو یاران دي
که په ایران دي که په توران دي
نو چې خواران دي زمونږ خپلوان دي

درسره یو دي زه یم که بل دے که د بېرغ دے که د غزل دے
نن مو په یو ځائے ګېر کړے غل دے
نن مو یرغل دے، نن مو یرغل دے

(میاشتنی "لار" پښتو شماره ۷
یکم جولائی ۱۹۵۷ء)

دکتاب د دې برخې ورو ستے اعتراض په دغو الفاظو کوي ۔

" ترکومه حده چې د حبیبي مرحوم د ۱۹۶۱ئه د دې تحریر تعلق دے چې هغه پنځوس کاله له مخه چې ځوان وو ۔ د تذکرة الاولیاء ورقې موندلې وې ۔ ماته ښځې بې معنا ښکاري ۔ ځکه چې دے په ۱۲۸۹ هش، ۱۳۲۸ ه ق ۱۹۱۰ء کښې زیږیدلے او په ۱۳۶۳ هش، ۱۴۰۴ ه ق، ۱۹۸۴ء کښې د څلورو اویا کاله په عمر کښې مړ دے. د ۱۹۶۱ء د بیان په رڼا کښې چې موږ پنځوس کاله شاته ولاړ شو نو د تذکرة الاولیاء د دریافت کال ۱۹۱۱ء جوړیږي چې د حبیبي مرحوم د زیږیدنې کال دے یا د لمړي کال کودک دے خو کودک نه څوک ځوان مني او نه دومره باشعوره چې په دې ښت په حجرو، جماعتونو، کلیو او قبرو کښې په زړو کتابونو پسې ګرځي چې د اسلافو ارزښتمن اثار راټول کړي ۔ " (ص ۱۱۴)

خو حبیبي صاحب د احقیقت ۱۳۶۱ هش کښې په دغو الفاظو داسې ښودلے دے.

" ۵۰ کاله پخوا زه د هلمند د ناوې د آدم خان په کلي کې، د زړو کتابو د پیدا کولو په اسره، د هغه ځای په ماېتو کې ګرزیدم ۔ "

(تذکرة الاولیاء ص الف)

د حبیبي صاحب د زیږېدنې کال ۱۲۸۹ هش / ۱۹۱۰ ء دے. او په کال ۱۳۶۱ هش کښې مرحوم دغه پورته ذکر شوي اقتباس کښې "۵۰ کاله مخوا" له مخه ۱۳۶۱ - ۵۰ = ۱۳۱۱ هش کښې ( ۱۳۱۱ هش - پېدائښ ۱۲۸۹ = ۲۲ ) هغه ۲۲ کلن ځوان وو. نهٔ چې د بناغلي سعیدګوهر په حساب کوډک وهٔ. د حبیب کتاب په دغه ټېروبېر کښې ګران لوستونکي دې اوس پخپله اندازه ولګوي چې د ښتې خزانې په پټو سترګو مخالفین د یو سپین سپېځلي او واضحه حقیقت په مخالفت کښې آخر دومره بې پروا او بې صبره ولې دي او آخر دې کښې څهٔ راز دے؟

---



# پټې خزانې اِملا

د کتاب په دغه دولسم[۱۲] باب کښې چې د پټې خزانې او تذکرة الاولیاء په اِملا کوم نیوکې شوې دي، د هغو لنډیز دا دے چې

ا- مولف یا کاتب خپله اِملا په یو مقرر او مخصوص طرز لیکي او دا املا ځاې په ځاې خپل شکلونه نهٔ بدلوي.

ب- ذکر شویو دوارو تذکرو کښې د املا دا فرق محض په دې وجه قصداً او عمداً شوے دے، چې لوستونکي یې په قدامت او لرغونتوب یقین وکړي.

زهٔ یو ځل بیا دا خپله خبره دوباره کوم چې ګوهر صاحب د پښتو زړو قلمي اثارو له مطالعې بېخي ناخبره دے. که ګوهر صاحب د دغه اعتراض د ځلي د پاره یوه هم لرغونه قلمي نسخه مطالعه کړے وے نو یقیناً چې په حیثیت د یو حق ګو د املا په دغه اعتراض به یې قلم نهٔ وه پورته

کړے ۔

کهٔ زهٔ د پښتو ادب د زړو قلمي نسخو د املا تر منځه هم دا قسم فرق کوم چې ګوهر صاحب د تذکرة الاولياء او پټې خزانې د املا متعلق د دغو دواړو تذکرو د حقیقت خلاف را منځ ته کړے دے ، په ګوته کړم ، نو روغ کتاب به ترې جوړ شي ۔ خو د دوستونکو د سرخوبدي په احساس زهٔ نهٔ غواړم چې دغه کښې په بنهٔ ډېرو مثالونو د خپل کتاب حجم غټ کړم ، بلکې د يوې نسخې نيمې د املا تر منځه کم نه کم دومره مثالونه پيش کړم چې دوستونکي ترې خپله دا اندازه ولګوی چې ګوهر صاحب په خپل دغه اعتراض کښې هم څومره حق بجانب دے ؟

کهٔ څوک د اخون درويزهٔ د "مجموعه رسائل" د قلمي نسخې لاندې درج تحرير وڅيري نو دا حقيقت به خپله ورڅرګند شي چې ايا دا دوه قسمه املا هم په يو مقرر او مخصوص طرز کښې ده ؟ او يا دې هم خپل شکلونه بدل کړي دي او کهٔ نه ؟ يا دا فرق اخون درويزهٔ يا کوم کاتب هم قصداً او عمداً محض په دې خيال را پيدا کړے دے چې څوک دې ئې په قدامت او درغنتوب يقين وکړي ؟

اخون درويزهٔ ليکي ۔

" دے چهٔ اوښ تويوين هم تا ووده آمون کا بدې دغه

---

ئے وګورئ د اسلاميه کالج پېښور لائبريری کښې د مجموعه رسائل قلمي نسخه ۔

عشق ي نه پېژني .

(۲) عاشق کهٔ ستا محبت نه وايئ ستاب اوښي ودړون نکړ
پردا وران سرايون باندي .

(۳) بل دا اوښيې وين بغرک تر دوار لیمه توئيږي.

(۴) دسنکرتيا د بېمثال د زيړي کل دا وڑالک سورکل دهر
چې اوښ دلوين دباران پد ود وريږي .

(۵) ستاب څه نغوبم لا يم چې پ پند کبني دتهمت
دي ماونه نغوت دسپين وېښت پندون چې داسپين
ويښت م لر دي په پند کبني لتهمت هيڅ تهمت ورنه
رغيږي .

(۶) نوس م بنه زيرمه وسکړ دبهتر مهمانې چې
بهترمهماني دنيک خوي دي سپين ويښته وو ميلمانه
پرسر راغلے مرک استاذي راستولي پحرمت ولاړيږي
که ما زده وايئ چې دسپين ويښته حرمت بپرځاي
سکړم .

(۷) دقيامت سفر بکړم ول زيرم دتوبښ راڅخ
نشت .

(۸) اے باري خدايه کرم کړي محمد رسول منعم
کړ .
رحم وکړ اي غفار .»

(١) کښې :- "چه" ، "اوښِ" ، "تاوده" ، "نه"

(٢) کښې :- "که" ، "نه" ، "اوښي"

(٣) کښې :- "اوښيے" ، "ليمه"

(٤) کښې :- "چه" ، "اوښِ"

(٥) کښې :- "څه" ، "چه" ، "ماونه" ، "ويښت"

"په" ، "ورنه"

(٦) کښې :- "ښه" ، "زيرمه" ، "چه" ، "ويښتهٔ"

"ميلمانه" ، "که" ، "مازده"

(٧) کښې :- "زيرمَ" ، "نشت"

(٨) کښې :- "خدايه" ، "کري" ، "کرِ"

"وکړه"

دپورته لفظونو په آخر کښې د "ه" استعمال د څنو خلقو پخيال ددې خبرې ترديد کوي چې ګنې متقدمينو به د "ه" پځاۍ صرف "زبر" پکاردولو - اګرکهٔ "زبر" او "زير" هم دډيرو الفاظو کښې استعمال شوے دے لکه "اوښِ" "ويښتَ" ، "زيرمَ" ، "کرِ" وغيره .

ددغو دواړه قسمه املا نه څرګنديږي چې دإملا دغه دواړه طريقې پخوا رائجې وې ، خو محض د "ه" په استعمال زړې إملا ته جديده إملا ويئل سمه خبره نهٔ ده -

بيا داهم لړ وځيرئ چې هم ديو کتاب په املا کښې ونيکو ته کله "اوښ" کله "اوښې" او کله "اوښيے" ليکي .

وېښتهٔ ته کله "وېښت" اوکله " وېښته " لیکي

ږېرمه ته کله خو " ږیرمه " اوکله " ږیرم " لیکي

چې خو په " ه " یعني "چه" لیکي

په "پ" او

به "ب" کښې د "ه" ضرورت نهٔ محسوسوي

کړې کله "کړي" اوکله " کړ" لیکي

دارزاني خوېشکي د دیوان یوه قلمي نسخه کښې د "چې"

استعمال کښې مې په موجوده شکل راغلے دے .

داشعرونه ولولئ سه

راشئ خیل مقصود وغواړ

حیوان نې چې ډېر څړے

کدې نوس درت وغاپے

ورت ووای چې کیږي

هر درخت چې پورته لوی شي

لدې نشي میوي ستړے

پر نوړ چې باران ووړے

اوبې راشي پر بڼ ورے

اوس کهٔ د اخون درویزه دح د"مجموعه رسائل"او ارزاني خوېشکي

ـــــ

له پښتو اکېډیمي پېښور یونیورسټي . ص - ۳۹

د پورته املا په بنیاد چې تر ډېره حده زمونږ د وسنۍ املا سره اړخ لګوي ، څوک د دغو دواړو کتابونو د جعلیت یوه وجه ګڼلی شي ، نو کیدے شي چې د غالب طرفداران ورسره اتفاق وکړي . ولې آخر دا باقي ټوله دنیا به څه وائي ؟

د املا د دغه فرق دپاره د متقدمینو د قلمي نسخو مثالونه خو تاسو ولوستل . راځئ چې اوس د همعصرو په کتابونو کښې لږ دغه فرق ته هم متوجه شو . اګر که د الفاظو دغه فرق ډېر دے ، خو زه به یې یو یو مثال وړاندې کړم . لکه

کله یګي - اوس سه اوس چه ډیرئے یادومه رانه هیر شو
کله یکي - وس سه وس به د دوئ ځنې وزر اخلم
کله یکي - امزرے سه خېبره دلته امزری وسیږی
کله یکي - مزرے سه مګر زهٔ جوړے مزرے د بیابان یم
کله یکي - اغزے سه د پروېز سترګو کښې اغزے یمه زهٔ
کله یکي - ازغے سه د وجدان زړهٔ کښې مې مات شوے ازغے سر دومي

د پښتو لرغونو خطي نسخو نه واخله د سعید ګوهر صاحب تر دوره هم په یوه قلمي نسخه او چاپ نسخه کښې د املا د دغه واضحه فرق په حقیقت اوس د انصاف تقاضا داده چې موصوف ورباندې مطمئن شي .

---

له دغو ټولو مصرعو دپاره د "سباوون" د دریمې اشاعت پر له پسې صفحات . ۵-۶،
۸ - ۷۲ - ۸۲ او ۳۲ وګورئ .

# د پټې خزانې راویان او د حوالې کتابونه

دکتاب په دغه باب کښې ګوهر صاحب د حافظ عبداللطیف اڅکزي او سېدال خان ناصر د شعرونو په حواله سنه ورکولو الزام لګولے دے چې دا شعرونه محمد هوتک پخپله یا له خپلې خوا لیکلي دي او هم د دغه قسمه خیال ئرګندونه یې دَ داؤد هوتک د شعرونو په ضمن کښې هم کړې دی.

دغه د حوالو نه ورکولو اعتراضونه ددې نه وړاندې د پټې خزانې د حقیقت په مخالفت کښې لیکلي شوي کتاب " د پټې خزانې مآخذ " د عنوان لاندې په باب کښې هم شوي دي چې جوابونه یې په خپله خپله موقع شوي دي - د حافظ عبداللطیف اڅکزي او سېدال خان ناصر پحقله ددغه تکرار شوي اعتراض جواب د پاره وګورئ " تول پارسنګ" صفحه ۲۱۰ - ۲۱۱ -

پاتې شوه دا خبره چې د حافظ عبد اللطیف اڅکزي، سېدال خان ناصر

او داؤد هوتک شعرونه محمد هوتک لیکلي دي ، نو دا الزام یا دا خبره آخر معترض په کوم دیل یا حواله کوي ؟

بل اعتراض دا شوی دی چې داؤد هوتک ته د ۸۲ کلونو په عمر کښې ۱۰۶ شعرونه ټکي په ټکي ثنګه یاد وو؟ او بیا د دغو شعرونو په هیڅ مصرعه کښې هیڅ ځائې هیڅ لفظ هم نهٔ غلطوي او نهٔ هیروي ؟ هم دغه غلط فهمي بناغلي ایان داؤدزي ته هم شوې ده ، چې ما ورته د دغه کتاب په "پیش نامه" کښې د "دستارنامه" یو مثال هم ورکړی دی .

د کوم صاحب نه ورانډې هم دا اعتراض[1] شوی دی . خو د دواړو تر منځه د شعرونو د شمیر واضحه فرق دی . یو اعتراض کښې دا شمیر ۹۹ او بل اعتراض کښې دا شمیر ۱۰۶ ښودلے شوے دے . بهرحال جواب دا دے .

کهٔ د خوشحال بابا د وینا مطابق

"بي بي عائشه (رضی الله عنها) په دا کار کښې ماهره وه ، د برې قصیدې (یې) یادی وې ، څو زره بیتونه یې یاد وو ."

(دستارنامه کابل چاپ ۱۳۶۵ هش ص ۲۳)

بیا خوشحال خان خټک تقریبًا دوه دوه نیم کاله د د تمبود په

---

[1] پټه خزانه في المیزان ص ۲۱۷

قلاړ کېښي د خپل ټبر په دوران څه وخت چې "دستارنامه" ليکله نو تقريباً دوه نيم سوه شعرونه چې اکثريت يې کښې د فارسي اشعارو د ے په ياد محض د خپلې حافظې په برکت ليکلي دي . د دغه ضمن کښې خوشحال خان خټک د دستار نامې په آخر کښې ليکي .

"کتابونه راټخه نهٔ وو ، اوکه نه ښې تهکې مې
به په داکتاب کړې وې . نظم ، نثر ، عربي ، فارسي
مې به په اشتهاد پکښې ډېر راوړي وو . امّا په
عندیات په حافظه خو به دا هومره څهٔ کېدهٔ ،
ادراک به هومره رسېدهٔ ......"

(دستارنامه کابل چاپ ۱۳۶۵ ش هـ ص ۱۳۷)

ياکهٔ بابا ئے چاربېته عبدالواحد ټهکدار (۱۹۰۳ع - ۱۹۹۶) ته د درې نوي (۹۳) کلونو په عمر خپلې په شلګونو چاربېتې يادې وې ، چې کهٔ هره چاربېته يې کم نه کم د پنځلسو شعرونو هم تخمينه کړو نو په سوونو شعرونه جوړېږي .

هم دغه شان مسلمانانو کښې په زرګونو د قرآن عظيم الشان حافظان چې کم نه کم د دوڼې په مياشت د حفظ کړي قرآن پاک ختمونه کوي نو حساب يې ولګوئ چې څومره شعرونه به ترې جوړ شي ؟

اوس کهٔ دغه پورته حوالې څوک حقيقت کڼي ، نو بيا تقريباً د اتياؤ کلونو په عمر د محمد هوتک پلار ته د ۱۰۶ شعرونو په ياد د حېرانتيا به د سره څهٔ جواز پاتې نهٔ شي.

بیا دګوهر صاحب دا دعوی چې

"هیڅ لفظ نهٔ غلطوي نهٔ څنې هېرېږي"

زهٔ نهٔ پوهېږم چې دغه دعوی موصوف په کوم دلیل کوي ؟ کهٔ چرې داسې وي چې ددغو ۱۰۶ شعرونو اصل ګوهر صاحب کتلے وي . او بیا یې د داؤد هوتک د بیان شویو شعرونو سره د مقابله کولو پس دا خبره کړې وي ، خو سرے به یې ومني ، ګنې داسې بې مقصده او هوائي دعوی آخر څهٔ فائده رسولے شي ؟

وړاندې اعتراض کېنې د محمدرسول هوتک کلا توال له بیاضه صرف د بهلول لودي ، خلیل خان نیازي ، خوشحال خان خټک او رحمٰن بابا د څلورو منظومو رانقلولو ته د حیرت خبره وائي او د داؤد خان هوتک په زباني روایت د ډېرو پخوانو شاعرانو ډېر کلام "پټه خزانه" کښې په خوندي کولو اعتراض کوي .

خبره داده چې بیاض کښې خو صرف هم شعرونه محفوظ وي ، یعنې دا څلور منظومې او د دوئ نور کلام په بیاض کښې خوندي او محفوظ وه ، هر کله چې د زباني یادو شعرونو د یاد لرونکي د مرګ نه پس د ضائع کېدلو امکان وي ، نو کهٔ محمد هوتک هم په دغه خیال د محمد رسول هوتک کلا توال له بیاضه صرف هم په څلورو منظومو اکتفا کړې وي . او د خپل زاړهٔ پلار داؤد هوتک د مرګ په احساس یې دغهٔ لهٔ خلې

د ډېرو پخوانیو شاعرانو ډېر کلام "پټه خزانه" کښې خوندي کړو ، نو دې کښې د حېرت څهٔ خبره ده ؟

بیا د رحمٰن بابا[1] پخقله لیکي .

"رحمٰن بابا هغه وخت هم رحمٰن بابا ؟"

مقصد یې دا دے چې هغه وخت رحمٰن ته چا "بابا" نهٔ وئیل .

خو زهٔ وایم چې کهٔ ما ته څوک دا حقیقت په ګته کړي چې د پښتو زوړ نثري ادب کښې چا رحمٰن ته "بابا" نهٔ وي وئیلي نو زهٔ به دا خپل الفاظ واپس واخلم . البته نظم کښې په هر دور اکثر په "رحمٰن" مخاطب شوے دے ، عن چې د سعید ګوهر صاحب پیشرو هم رحمٰن بابا په "رحمٰن" مخاطب کړے دے . لکه . سه

رحمانه ستا د پاک مزاره څنې
د ازاریانو لـــړ خــبر واخلمه

او د "رحمٰن بابا کلیات" په مختصره مقدمه کښې یې څو واري "رحمٰن بابا" یاد کړے دے .

بیا د محترم عبدالشکور رشاد صاحب د "لودي پښتانهٔ" په حواله چې کوم اعتراض شوے دے - د هغهٔ مقصد دا دے چې خلیل خان نیازي د بهلول لودي په درباري شخصیتونو کښې هډو

---

[1] "سباوُن" ص ٥ - ورومبے اشاعت

د سره څوک سرے نهٔ وهٔ ، ځکه نو د محمد رسول کلاتـوال هوتک د بیاض په حواله چې "پټه خزانه" کښې دده کوم ذکر شوے دے دا هیڅ اتبار نلري .

خبره داده چې محترم عبدالشکور رشاد صاحب خو پخپل تالیف "لودي پښتانهٔ" کښې د سلطان بهلول لودي د وختو د حکامو[۱] ، درباري امـراء او مصنیفینو ذکر کړے دے. بیا پټې خزانې خو داهم نهٔ دي لیکلي چې ګنې خلیل خان نیازي د سلطان بهلول لودي د دربار کوم حاکم یا امیر وهٔ - د "مرقع افغان" په قول هرکله چې سلطان بهلول لودي په نیازیو کښې بې مـروتي لیـدله ، نو دا څنګه کیدلے شي چې د خلیل خان نیازي نوم دې د سلطان بهلول لودي د دربار په حکماؤ یا امراء کښې راشي ؛ البته خلیل خان نیازي د بهلول لودي د زمانې یو داسې شاعر وهٔ چې درباري هم نهٔ وهٔ ، چې د مصنیفینو په فهرست کښې یې شامل کړے وے. او نهٔ پټې خزانې دا لیکلي دي چې ګنې خلیل خان نیازي دکوم کتاب مصنف وهٔ - اوکهٔ دغه ټولې خبرې بیا هم څوک نهٔ مني نو د سلطان محمود غزنوي په دربار کښې خو هم څلور[۲] سوه شاعران وو - ایا ددغو ټولو شاعرانو ذکر هم په کوم تاریخ کښې شته ؟

---

[۱] لودي پښتانهٔ ص ۱۱۸ او ص ۱۲۳

[۲] وګورئ شعر العجم حصه اول ص ۵۹

دغه نه پس اعتراض کیږي یې د پښتو خزانې د حوالو د کتابونو یو فهرست وړاندې کړی دے . بیا دغه فهرست نه یې مخزن افغاني، نافع المسلمین، خوشحال خان خټک، رحمن بابا، عبدالقادرخان خټک او محمد یونس د دیوانونو په منفي کولو د باقي پاتې ۳۷ کتابونو په حقله دا پوښتنه کوي چې دا ۳۷ کتابونه تر اوسه آخر پیدا ولې نشول ؟

اوکه د غه شان سوال زه د ښاغلي سعید ګوهر نه هم وکړم چې تواریخ افاغنه مولفه خواجو ملیزے، د شیخ ملي دفتر د خوشحال خان خټک آئینه ، فرخنامه ، بیاض ، فارسي بازنامه ، نه علاوه د معزالدین خټک د بقیة الاسلام نومي کتاب چې په کال ۱۱۶۰ هـ کښې لیکلے شوے دے په ۱۲۱ ماخذونو کښې دغه لاندې درج کتابونه چې پښتو عالمانو لیکلي دي تر اوسه ولې پیدا نهٔ شول ؟ نو ښاغلے سعید ګوهر صاحب به یې څهٔ جواب وکړي ؟

کتابونه دادي .

| | |
|---|---|
| (۱) عمدة الاسلام | (۲) اساس الاسلام |
| (۳) مصباح الهدایه | (۴) نجات المومنین |
| (۵) فقهه نورالدین | (۶) تحفة الصلحاء |
| (۷) سیف السنة | (۸) مفتاح الجنان |
| (۹) نصاب الاحتساب | (۱۰) فتاوی ابراهیم شاهي |
| (۱۱) مدارک السالکین | (۱۲) فتاوی اخون موسی |

(۱۳) تحفة الخاني (۱۴) حل مشکلات الفقهه

(۱۵) گل چین (۱۶) خلاصة المعارف

(۱۷) خزانته الجالي (۱۸) تحفة الفقهاء

(۱۹) حلاوة الاسلام (۲۰) اساس المصلی

(۲۱) هداية الاعمی (۲۲) تذکرة البيان

(۲۳) محک العارفين (۲۴) شرح عين العلم

(۲۵) برهان الانبياء والاولياء [۱] (۲۶) دشهزادګۍ وت وبدمن قيصه [۲]

يو بل اعتراض کېنې يې دبناغلي منفرېر لونز په حواله داخبره کړې ده چې نوموړي ته مارچ ۱۹۸۳ء کېنې ديوملاقات په وخت محترم زلمي هېوادمل د "مخزن افغاني" په حقله داخبره کړې وه چې دنعمت الله هروي داتاليف دپټې خزانې د دريافت (۱۹۴۳ء) څخه وروسته پيدا شوې دې. حالانکې مخزن افغاني برنارډ ډرون په انګرېزۍ ژبه ژباړلې او کال ۱۸۲۹ء کېنې اول ځل شائع دې .

داخبره هم سمه څکه نهٔ ده چې د بناغلي منفرېر لونز سره د محترم زلمي هېوادمل د ذکرشوي ملاقات نه تقريبًا شلورکاله د مخه کال ۱۹۷۹ء کېنې دافغانستان دعلومو اکېډمۍ

---

[۱] دا داخون درويزهٔ کتاب دې چې ذکر يې دهغهٔ په يو بل کتاب ارشاد المريدين" کېنې راغلې دے

[۲] دا احمد دتيراهي کتاب دے .

له خوا شائع شوې د دیارلسو مختلفو مقالو "تاریخي پلټنې" نومې مجموعه کښې محترم زلمي هیوادمل د "مخزن افغاني د پښتو خزانې د یو مآخــذ په توګه" خپله مقاله لیکي -

" د محمد هوتک له ګڼو ماخذو څخه یو ماخــــذ مخزن افغاني دی ، موږ به په دې لیکنه کې دا روښانه کړو چې د پښتو خزانې هغه کښني ، چې د مخزن افغاني له مخه شوې دي ، څنګه او په څه ډول دي ؟"

(تاریخي پلټنې ص ۱۵۶)

هم دغه شان یوه خبره بناغلي سعید ګوهر د محترم ډاکټر ایم - اے زیار متعلق هم د بناغلي منفرډ لونز د کتاب په حواله لیکلې[۱] ده ، چې ډاکټر ایم - اے زیار یې پخپل یو خط کښې تردیـــد[۲] کړے دے - داسې معلومیږي چې بناغلي منفرډ لونز ته په دغو دوارو موقعو څه غلط فهمي شوې ده -

★

---

[۱] پټه خزانه في الحقیقت ص ۶۸

[۲] دا کتاب ص ۲۸

# اصناف او شاعران

د پورته موضوع لاندې پخپل ورومبي اعتراض کښې سعيد ګوهر صاحب خپلو لوستونکو ته دا ښيل غواړي چې د پټې خزانې د ورومبۍ برخې د ۲۲ تو شاعرانو په کلام کښې هغه ټول اصناف را نغښتې شوي دي کوم چې فارسي شاعرۍ کښې مروج وو. په کته کړيو نولسو اصنافو کښې يې د ساندې، هجو وهزل، مزاح مسدس او شاهنامې ذکر هم کړې دے. خو که د ورومبۍ خزانې هم په دغو ۲۲ تو شاعرانو کښې يې لږ دا وضاحت هم کړے وے چې کوم صنف کوم يا کوم کوم شاعر ليکلے دے - نو لوستونکو ته به د ساندې، هجو وهزل، مزاح، مسدس او شاهنامې ديکونکو په لټه کښې زحمت نهٔ محسوسېدو.

پاتې شوه دهٔ شاعر ديو يو صنف خبره. نو پټه خزانه خو يوه تذکره ده - او کهٔ تذکره کښې محمد هوتک د اختصار په خاطر صرف ديو يو صنف په ورکړه اکتفا کړې وي، نو د تذکره نګار په دغه انداز د اعتراض څهٔ خبره ده؟ خو د بناغلي سعيد ګوهر مقصد دا دے چې تذکره نګار ته " صرف د اصنافو

نمائندګي مقصود وه"

کهٔ د سعيد ګوهر صاحب دا اعتراض صحيح وي نو بيا دسانډې هجوهزل ، مزاح ، مسدس او شاهنامې د اصنافو په شمول د حمد نعت ، منقبت ، تاريخ ګوئي ، معشر ، ترکيب بند ، ترجيع بند ترکيب بند ذوالقافتين ، مربع او مسبع وغيره د اصنافو نمائندګي ولې او نهٔ شوه ؟ حالانکې د دغو اصنافو کمې تذکره نويس ډېر په اسانه د خوشحال خان خټک او رحمٰن بابا له ديوانونو پوره کولے شو . او د شيخ صالح او على سرور د غزلو په موجودګۍ او نمائندګۍ کښې د رحمٰن بابا او خوشحال بابا د غزليا تو ځائې د ذکر شويو يا دغو کښې د يوځو نورو اصنافو نمائندګي ولې ونهٔ شوه ؟ ځکه نو ورومبۍ خزانه کښې د يوڅو اصنافو د موجودګۍ متعلق د ګوهر صاحب دا خيال چې ګني دې نه د پښتو شاعرۍ بستېرتيا او پرمخ تګ مقصود وهٔ . بيخي د نهٔ منلو خبره ده .

پاتې شوه د امير کروړ د وجود مسئله - نو اګر کهٔ ذکر يې د "لرغوني پښتانهٔ " او تاريخ سوري په حواله شوے دے . او د بده مرغه دغه دواړه لکه د خواجو ملېزي د " تواريخ افاغنهٔ " او شيخ ملي د دفتر اوس ناپېد دي ، ځکه ګوهر صاحب لګيا دے د پټې خزانې په مخالفت کښې له دغه تاريخي بد مرغۍ نه په ډکه منګل د امير کروړ له وجوده د انکار فائده اخلي - افسوس خو دا دے چې " تاريخ ادبيات ايران " کښې ډاکټر رضا زاده شفق صاحب

د حضرت عیسیٰ علیه السّلام نه وړاندې د هغه منشي بادشاهانو په دور د ایران یو مصنف هرمپوس ازمیري ذکر د یوناني مآخذ په حواله نه کوي ، خو مآخذ نوم نهٔ اخلي چې کتاب د ے او که ډیره ؟ نو هیڅوک پرې تنقید نهٔ کوي . او نهٔ تر اوسه کوم ایراني محقق یا نقاد د هرمپوس ازمیري د وجود نه انکار کړے د ے . او کهٔ د ډاکټر شفق صاحب په قول د ایران د پخواني دور اکثر علمي او ادبي اثار د انقلابانو په وجه ناپید دي ، نو کوهر صاحب خو به يې ومني . ولې کهٔ څوک پښتون محقق هم د غه خبره د پښتو د لرغوني ادب او کوم لرغوني شاعر په حقله وکړي ، نو بیا کوهر صاحب ورسره اتفاق نهٔ کوي . نهٔ تاریخ سوري مني او نهٔ لرغوني پښتانهٔ ، نهٔ غرغښت نامه مني او نهٔ ګلدسته زعفراني مني او نهٔ تحفه صالح وغیره .

ډیره عجیبه خبره خو داده چې کوهر صاحب د امیر کروړ د پلار امیر فولاد وجود خو تسلیموي ، ولې د امیر کروړ وجود نهٔ مني . کامران خان سدوزے خو بلا شبه حقیقي شخصیت مني خو د هغهٔ کتاب کلید کامراني نهٔ مني ، شیخ رضي لودي او نصر لودي خو مني ، ولې د هغو اشعار نهٔ مني ، شیخ اسمٰعیل او خرښبون خو مني ، ولې د هغو د شاعرانه حیثیت نه انکار کوي .

د اتول بعینهي داسې مثالونه دي لکه چې څوک حبیب الله خان مېناخېل مروت (مرحوم) د فیلډ مارشل محمد ایوب خان (مرحوم)

په دور د پاکستان دکورنو چارو د وزیر په حیثیت دپاکستان تاریخ کښې یو مستند شخصیت څو مني ، ولې دهغه له دوه قلمي شعري مجموعو " وړې وړې سنګې " او " زندان نامه " نه منکر وي . ځکه چې په حیثیت د شاعر موصوف سېوا دهغهٔ لهٔ زامنو او بناغلي سید چراغ حسن شاه نه لا څوک خبر نهٔ دي . او کهٔ نن د هغهٔ د دغو شعري مجموعو پحقله چا څهٔ وُنهٔ ویل نو یقیناً چې سل کاله پس به یې هیڅ یو سعید ګوهر صاحب ونهٔ مني. او هم دا به وایئ چې دا د حبیب الله خان میناخیل مروت سره منسوب کړے شوې شعري مجموعې دي . بلکې نفي کښې به یې د سلو نه هم زیات جوازونه پیش کړي .

بیا دا اعتراض چې

" د شیخ ملک یار سندره محمد هوتک بغیر د څهٔ حوالې په پټه خزانه کښې شامله کړې ده ، زهٔ یې غیر معتبره او د قبولیت جوګه نهٔ بولم ."

(ص ۱۳۱)

ګوهر صاحب لیکیا دے د دریو سوو کالو وړاندې لیکلې تذکرې دموجوده وخت د تذکرو د اصولو ، ترتیب او قاعدو په کنده تلي . موصوف کهٔ کم ازکم د فارسۍ زړې تذکرې هم وکتلې ، نو د خپلو اکثرو اعتراضونو جوابونه به بیا موندي . دغو تذکرو کښې بنو بنو او ډېرو معتبرو تذکره نګارانو ډېرې خبرې بغیر د څهٔ حوالې ورکولو لیکلې دي . . لکه د "چهار مقاله" تذکره نګار

احمد بن عمر بن علي نظامي عروضي سمرقندي خوهم پخپله ذکر شوې تذکره کښې د ابوالقاسم فردوسي متعلق ډېرې خبرې بغېر د څهٔ حوالې ورکولو ليکلي دي . خصوصًا د ژوند د حالاتو او شعرونو پخقله يې هم څهٔ حواله نهٔ ده ورکړې .

دغه شان امير دولت شاه سمرقندي هم په "تذکرة الشعراء" کښې نهٔ خو د رودکي د حالاتو او شعرونو په ضمن کښې د څهٔ حوالې ورکولو ضرورت محسوس کړے دے او نهٔ د اسد طوسي او نورو ډېرو لرغونو شاعرانو د ژوند د حالاتو او شعرونو دپاره يې د حوالې ورکولو زحمت کړے دے .

بيا د ملا قاطعي هروي (مړ ۱۰۲۴ه) "تذکرهٔ مجمع الشعرای جهانګير شاهي" وګورئ . دا کثرو شاعرانو حالات او شعرونه بغېر د څهٔ حوالې ليکي دا کثرو شاعرانو د تاريخ پېدائښت او تاريخ وفات د ليکلو ضرورت هم نهٔ محسوسوي -

د تعجب خبره خو دا ده چې هم دغه د حوالو په نهٔ ورکولو يا د پېدائښت د تاريخ او مړينې د تاريخ نهٔ ليکلو د ګناه باوجود دغه ټولې تذکرې خو اصلي او حقيقي دي . ولې هم په دغه ګناه "پټه خزانه" جعلي تذکره ګرځولے شي .

# د
# شاعرۍ مشترک سبک او
# لفظیات

---

دلته د پټې خزانې په وړومبۍ خزانه کښې د الفاظو په یکسانیت او یو والي اعتراض شوے دے - او بیا د الفاظو د دغه یو والي او شاعرانو د اسلوب او انداز بیان په حقله ګوهر صاحب د دې غلط فهمۍ ښکار شوے دے چې ګني دا د یو شاعر کارنامه ده چې وروستو بیا په ډېرو شاعرانو وېشلے شوې ده۔

حقیقت خو دا دے چې د پټې خزانې د وړومبۍ برخې د شاعرانو نۀ خو اسلوب یو دے ، نۀ یو رنګ لري ، او نۀ یو انداز ، بلکې د اهر څه یې جدا جدا دي او هر شاعر خپل تخصیصات او ممیزات لري ، هم دغه وجه ده چې "پټه خزانه فی الحقیقت" کښې د ګوهر صاحب پېژندګلو کونکے محترم ایاز داؤدزي هم دغه لړ د سعید ګوهر صاحب سره اختلاف کړے دے لیکي .

" په دې کښې شک نشته چې " پټه خزانه " کښې

راغلي " کلام " مختلف رنګ لري. مختلف اسلوب لري.
د ژبان او بيان رنګارنګي هم لري ، نو څوک به وي
چې هغه داسې " جعلي "کتاب پخپله تصنيف کړي . "

(ص ۱۴)

اوس پاتې شوه د لفظي اشتراک خبره ، نو زه هم که د مختلفو شاعرانو په کلام کښې د مشترکو الفاظو فهرست ليکل شروع کړم ، نو خبره به ډېره وږده شي - البته د لوستونکو د قناعت دپاره څــنې داسې الفاظ به خامخا ليکم چې هغه د متقدمينو ، متوسطينو او متاخرينو ټولو شاعرانو په منظوماتو کښې مشترک دي. او هيڅوک ترې انکار نه شي کولے نکه .

ځيګرخون ، غنچه دهن ، شوخ وشنګ ، رازونيـاز ، پېچ وتاب ، صبح شام ، دلنواز ، سبک رفتار ، مشک وعنبر ، غماز ، دېدار ، رقيب ، ګېسو ، اوربل ، نقاب ، سپند ، مجمر ، دلربا ، وفا ، جفا ، کباب ، شراب ، مرغلره ، بوس وکنار ، غم‌غماز ، نے وچنګ ، هجران ، داغ وباغ ، وصال ، بڼ ، بلبل ، ېهواد ، آب حيوان ، لب شکر ، سوز وګداز ، شکر بار ، حسن وجمال ، ځيګر ، جام ، مے ، مهر وماه ، منصور ، مجنون ، فرهاد ، بېستون ، عندليب ، غمزه ، نقاب ، ګوګل ، رند ، واعظ ، خرابات ، هماے ، بحر وبر ، خال ، سنبل ، آهو ،

او ذاسي نور په سلګونو الفاظ .

زما په خيال له دغه حقيقته به څوک انکار ونهٔ کړي چې ذکر شوي الفاظ او دغو نه پرته نور هم ډېر الفاظ کم ازکم دخوشحال خان خټک نه يې راواخله دسعيد ګوهر پورې د ټولو شاعرانو په منظوماتو کښې بار بار راغلي دي . اوس کهٔ د دغو الفاظو د اشتراک په بنياد څوک داپاسي او دا اووائي چې د دغو ټولو شاعرانو کلام د يو سړي کارنامه ده نو څوک به يې ورسره ومني ؟

وړاندې بل اعتراض کښې ګوهر صاحب ليکي .

"حالانکې د اولني شعر د معيار پس راتلونکي اشعار چې د دروستني وخت سره علاقه لري بايد چې له هغهٔ ټخه نور لوړ او نور زور ور وي ."

(ص ۱۳۴)

خو د سعيد ګوهر صاحب د دغه فکر له مخه د کاظم خان شيدا او هغهٔ نه وړاندې شاعرانو لکه خوشحال ، رحمٰن ، عبدالقادر ، هجري ، حميد او علي خان نه پس بايد چې پښتو شاعري ډېره هم لوړه او زوروره شوې وے ، خو د کاظم خان شيدا نه پس کم نه کم سلو کالو پورې کهٔ د پښتو شاعرۍ جاج واخستلے شي ، نو ګوهر صاحب ته به خپله معلومه شي چې ضروري نهٔ ده چې د اولنۍ شاعرۍ نه پس د دروستنۍ شاعرۍ معيار دې خامخا جګ او اوچت وي . ځکه چې پښتو کښې تر اوسه نهٔ خوشحال پيدا شو او نهٔ رحمان نهٔ حميد پيدا شو او نهٔ علي خان . دغه رنګ اردو نهٔ خو بل ميرتقي مير

پیدا کړو او نهٔ بل غالب ، فارسي نهٔ بل سعدي پیدا کړو او نهٔ بل حافظ ، انګرېزي نهٔ بل شکسپیئر پیدا کړو او نهٔ بل بائرن وغیره.

اخري اعتراض داکوي چې د "وین" "غشي" او "اور" الفاظ د پښتو خزانې د وړومبي برخې داکثرو شاعرانو په کلام کښې تکرار شوي دي . مقصد یې داد ے چې مختلفو منظوماتو کښې ددغو لفظونو تکرار هم د یو سړي په کارنامه رڼا اچوي ، یا په نورو الفاظو دا هم د یو سړي لیکلي شوي شعرونه دي .

خو د پښتو خزانې د وړومبي برخې د شاعرانو نه علاوه هم د نورو ډېرو شاعرانو په کلام کښې دغه شان په شګونو الفاظ تکرار شوي دي ، چې دلته ترې صرف یو څو الفاظو لکه "تاراج" "غماز" ، "چراغ" او "هجران" مثال پېش کو ے شي .

## تاراج :-

خوشحال بابا سه

زهٔ او مے اے محتسبه ؟
کهٔ مې خونه شي تاراج

رحمن بابا سه

یونتوب دیونیو تلو نے نهٔ د ے
کهٔ یې راج په خونه ورشي کهٔ تاراج

قلندر اپریدي نه

حق حیران یم د خوبانو په مزاج
چې په سرو سترګو یې زړونه کړهٔ تاراج

یونس خیبري نه

وهر چا ته چې عشق ولېږي افواج
په اول یې عقل و هوش کاندي تاراج

مرزا خان انصاري نه

فرهاد چې هسې کوښې شو له خلقه
دشېرینې زړګي وړے دے تاراج

حمید بابا نه

د سکون متاع یې هیڅ راته پرې نښو ده
عاشقي د هغه یار هسې تاراج کړم

بېدل نه

په هر ځائې کښې ناست ولاړ سمیڈے نښتم
جدائيه مې کوړ د صبر کړو تاراج

احمد شاه ابدالي نه

دا د زلفو له تاراج
اخلي سر و مال په باج

معزالله خان مومند نه

غارتګر د مینې هسې غارت وکه
چې یې مال زما د صبر کهٔ تاراج

حسین ـ

څو دې د هجران غمونه نه کا تخت تاراج
سم به دې په مینه کښې هرګز نه شي مزاج

## غماز :-

خوشحال بابا ـ

زما تر خله وته ووت چا وسـنه وي
خپل نفس دے په سرې باندې غماز

رحمٰن بابا ـ

که څوک آه د فریاد بنه ګڼي په عشق کښې
زه په عشق کښې دغه کار ګڼم غماز

عبدالقادر خان خټک ـ

چې خپل یار عبدالقادر ته په پټ بنه وي
نور یې کومه اندېښنه ده له غمازه

احمد شاه ابدالي ـ

که پټ دوایم خـه راز
کور دې ورک شي د غماز

بیاض ـ

بندوبست به یې زما د مرګ وي کـړے
لاس تر غاړه چې بیا راغلے د غماز

یونس خیبرے سه

چې عیسٰی موسٰی په لاس دیونس شته دے

سرو بیره ځنې وساته غمازه

پیر محمّد کاکړ سه

دلربا مې تسله دخاطر نهٔ کړي

همیش لاس زما په زړهٔ وهي غمان

جمعه خان بارکزے سه

وصل به دوزي په دوئ نهٔ کړي بې یقینه

کوڼ وپه صحرا کښې درسره ګرځي غمان

رحمت داوي سه

توري غټې سترګې چې موسره تړې شوې ښکلې

یو نظر پر ماکړه چې خبر نهٔ شي غمان

حسین سه

وار په وار زما دغم بېټے راکاږي

دبېار سره مې زیست واخست غمان

## چراغ :-

خوشحال بابا سه

ورځ وربانديې شپه ده په تورتم کښې یې مشته ده

کله به لیدهٔ شي دخوشحال د زړهٔ چراغ

رحمن بابا ؎

هر یو گل دستا د باغ روښن تر دے تر چراغ
روښن تر دے تر چراغ هر یو گل دستا د باغ

حمید بابا ؎

دا یې خط نه شو نما کاندي له مخه
یا نرے نرے لوگے څي له چراغه

عبد القادر خان خټک ؎

په لحد کښې به د شمعې رڼا نه وي
مگر یوسې د سره د آه چراغ

پیر محمد کاکړ ؎

خوار بورا په گلو گرځي سینه سوے
ډېرتنگ دے سریکار له دې چراغه

شمس الدین کاکړ ؎

زړه زما هسې نرے نرے فریاد کا
لکه دود چې نرے خېژي له چراغه

ملا لتاړ ؎

چې په زړه باندې لري د مینې داغ
دغه داغ یې په گوگل کښې شي چراغ

یونس خیبرے ؎

ستا د مخ تر روښنائۍ حسن د غېږه
په روښنا نه ورځ معلوم دے بل چراغ

اشرف خان هجري ـــه

چې فروغ لري د مخ لـــکه چراغ
ځاې لري کهٔ په عالم کاندي دِ ماغ

حسن ـــه

ستا د مخ له ډيوې زړهٔ زما ډيوهٔ شـهٔ
په لوږي پسې ملبه ځي له چراغـه

احمد شاه ابدالي ـــه

زهٔ احمد د يار په لوري په سر درومـم
د پښتون په تيارهٔ هسې بې چراغـه

علي خان ـــه

غوره کړے مې پتنګ غونډې پرې سوے دے
روغ به څهٔ ځم ستا دميني له چراغه

سعيد ختک ـــه

تربيت به په ناهـل اثـر وکا
کهٔ ممکن شي په اوبو نور دچراغ

## هجران :ـ

رحمٰن بابا ـــه

څو به شمېرم درد غمونه د هجـران
هو مره ډېر شو لکه شـګې د بيابان

خوشحال بابا سه

کهٔ د زړهٔ سترګې لرې ننداره وکړه
په وصال کښې مهيا ګنه هجران

یونس خیبر سے سه

هېڅ طرف يې له فرياده خالي نهٔ وي
په هر لور نارې سورې دي له هجرانه

قلندر اپریدی سے سه

د هجران ناکردې ګوره چې يې کاندي
چې مدام په عاشقانو پسې شوردے

معز الله خان مومند سه

دوباره مې ترلمنې کهٔ ګرېوان
چې غمونه راښکاره شو د هجران

له دغونه علاوه نورهم ډېر الفاظ د ذکر شوېو شاعرانو په منظوماتو کښې شته لکه "وصال" "غمزه" "کاکل" "زلفې" "لب" "بارخو" "سکندر" "دم عیسٰی" "فرياد" "عرفان" "مهجور" او "خوبان" وغيره.
خو د مختلفو شاعرانو په منظوماتو کښې د يو شان الفاظو دتکرار دامعنٰی نشوه چې ګنې ددغه لفظي اشتراک په وجه د دوي ټول کلام صرف او صرف هم د يو شاعر کارنامه ده چې په مختلفو نومونو يې وېشلې ده.

---

# لرغوني که جوړکړي الفاظ؟

دلته بحث د پټې خزانې په هغو لرغونو الفاظو دے چې د سعید ګوهر صاحب په خیال لرغوني خو نهٔ دي ، البته په پخواني انداز په دې خیال جوړ کړے شوي دي ، چې خلق پرې دغولېږي او د لرغونو الفاظو ګمان ورباندې وکړي . او د پټې خزانې اصلیت ته پرې تقویت ورکړے شي .

بیا داهم ویکي چې د پټې خزانې د اشاعت نه وړاندې په چاپ لغتونو، دیوانونو او کتابونو کښې د دغو الفاظو موجودګي د نهٔ پیدا نهٔ کړه ، ځکه نو دا ګمان کوي چې دا ټول الفاظ په پخواني انداز جوړ کړے شوي دي - یاده دې وي چې ګوهر صاحب د دغه قسمه اوښیا الفاظو یو فهرست هم ورکړے دے .

ترکومه چې د ړومبي پیراګراف کښې د الفاظو په نوي انداز کښې د جوړولو الزام دے ، نو په حیثیت د یو محقق ګوهر صاحب ته پکار وو چې د دغه مشتبه لفظونو د کره کوټه معلومولو د پاره د هغو علاقو له خلقو نې تصدیق کړے وے ، د کومو علاقو شاعرانو چې دغه الفاظ پخپلو منظوماتو کښې راوړي دي ، یا د هغو علاقو

دوره یې کړې وې . او په خپله یې خپل شک په یقین بدل کړې وې - او بیا یې داهر څه خپلو دوستانو ته پېش کړې وې .

ګومر صاحب ته شاید دا معلومه نهٔ ده، چې د لرې او برې پښتونخوا په دروستو پاتې علاقو کښې اوس هم خلق په خپلو روزمره خبرو اترو کښې داسې ډېر الفاظ استعمالوي چې لا نهٔ خو د ګومر صاحب تر غوږو رسېدلي دي او نهٔ زما - نهٔ یې ګومر صاحب په معنی پوهېږي او نهٔ زهٔ - بیا د پښتې خزانې د دروبې اشاعت نه وراندې په چاپ لغتونو، دیوانونو او کتابونو کښې د ذکر شویو اوګیا الفاظو د غېر موجودګۍ خبره خولا څهٔ، چې په زرګونو داسې الفاظ نن هم په یو لغت یو دیوان او یو کتاب کښې موجود نهٔ ثابتېږي - خو بیا هم حقیقت نه یې ډېر قوي دي مثلاً دغه لاندې درج الفاظ - دغو الفاظو کښې بهٔځنې داسې الفاظ هم وي چې چرته لغت نیم به یې ذکر کړې وي - د لې مفهوم او معنیٰ کښې به یې د زمکې او اسمان فرق وي .

۱- باټ - تېخې . تېغنه .

۲- جژمه - نیم کښو ، خصوصًا د سترګو

۳- جګنه - د غاړې دسرو زرو امېل

۴- چرچنډې تپنډې

۵- چاغوښکې د سترګو بهرني یعني غوږ دنو طرفته ګټونه

۶- خپیاسه خبنته

۷- خرسکه — طوطاګرے - ابابیل

۸- درنګه — مرداره

۹- ژغونده — د بهګال وېن مے

۱۰- سپینه — څلور انیز

۱۱- سوربُوټے — نو لے

۱۲- شکرتتي — شمشتۍ

۱۳- کېږ — اخور

۱۴- کاوین — نکاح

۱۵- کتېز — بناپېرک

۱۶- کرماني — کچالو

۱۷- کوږي بلي — بلونګړے

۱۸- ګرږیوه — دادبو ټبنلو خاورین لوښکے

۱۹- ګیدي — اندرکۍ - دمالوچو جوړ واسکټ

۲۰- ماسترغے — مازغه

۲۱- یویا — آکۍ - ها

۲۲- پلمنه — مچ برنګ - مچ شړونے

۲۳- پښتوال — د پښې د پښۍ اوګیمتو ترمنځه حقه.

۲۴- پیاخه — د تودو مچو دګبین لاندې هغه برخه چې بچي پکښې اچولے شي.

۲۵- تېنګه — اشر - بسکر

۲۶- چتنے — هغه ګډورے چې لم نهٔ لري.

| | | |
|---|---|---|
| ۲۷- | چغو شکي | ٹونوکی - هغه وښتهٔ چې د غوږونو سره پرښبود ے شي . |
| ۲۸- | خرټ | لټ ، بیکاره |
| ۲۹- | خرپانډ ے | بلونگمنے |
| ۳۰- | دبېز | جارو |
| ۳۱- | زاڅے | د نیمزالي چیلی د څرمنې جوړ شو ے مشک |
| ۳۲- | زمبر | مخ - د مخ یو طرف |
| ۳۳- | زیړه زرغونه | بوډی تال - شنه زرغونه . |
| ۳۴- | ژغور ے | کچه فصل ، ورکو تے فصل |
| ۳۵- | ژغژغرے | کُت کانے -کنکر - سنگریزه |
| ۳۶- | سټوبړے | بیټے - بوج - بار |
| ۳۷- | شمږه | پوزه |
| ۳۸- | شنته | جگړه ، ورانه ، نالکي |
| ۳۹- | شول | بیکاره - هجړا |
| ۴۰- | شېخ | غونډل - یو زهرناکه جولابشا کونګت |
| ۴۱- | شېږ | لمده هوا |
| ۴۲- | غروے | د لاس تلے ورغوے |
| ۴۳- | کوتلی | د چرگو کندو |
| ۴۴- | کشوندري | د پسبنو گیتی |
| ۴۵- | گرگه | دهړو داڅه |

| | | |
|---|---|---|
| ۴۶- | ګمبړی | سنتره |
| ۴۷- | مسی | جرابې |
| ۴۸- | وېښی | یو قسم دلاس دسرو زرو بنګړي. |
| ۴۹- | دسا | اسوده - په آرام |
| ۵۰- | هریال | هغه ځاروے چې له کوره په صحرا خوښ وي - روخن |
| ۵۱- | ایک | الو |
| ۵۲- | الوکسی | کېلا |
| ۵۳- | امبوت | ام |
| ۵۴- | امبرکې | لویه تبه |
| ۵۵- | بددړڅه | بوڼ |
| ۵۶- | بوړائي | دغوا مېښو ونړه |
| ۵۷- | بُوش | بانړس |
| ۵۸- | باوړ | یو شلونکے ځناور چې نور ځناور خوري. |
| ۵۹- | بیز | بوس |
| ۶۰- | پتهانک | ناشپاتۍ |
| ۶۱- | پتان | د لرګي پُل |
| ۶۲ | پوړے | پمنکے |
| ۶۳- | پائي | شوملې |
| ۶۴- | پربړا | دشولو پیک |
| ۶۵- | پوڼ | دنداسه |

| | | |
|---|---|---|
| ۶۶- | پېړ | قرض |
| ۶۷- | پولایا | وړیا - مفت |
| ۶۸- | تیخور | خارښت |
| ۶۹ | تهنړي | ساه |
| ۷۰- | چنګسه | چیندخه |
| ۷۱- | داړه | دروانړه |
| ۷۲- | ډُوک | بنجره زمکه |
| ۷۳- | ډیړي | د اوښ کُب |
| ۷۴- | ډل بډل | ډُونډ |
| ۷۵- | راش | پېروے |
| ۷۶- | ژغزغه | ګونګړو |
| ۷۷- | سرکوسه | ګوګوشتکه |
| ۷۸- | سولتها | کربوړے |
| ۷۹ | سلمر | طاؤس |
| ۸۰- | سیلمه | د ښښي پېزوان |
| ۸۱- | سورغ | ډیوه - څراغ |
| ۸۲- | شملانګ | پرخه |
| ۸۳- | شُوتکے | بیخو |
| ۸۴- | کودبېنز | څُک |
| ۸۵- | کنراوُ | د ځناورو د پښو نوکونه |
| ۸۶- | کوراغے | کارغهُ |

| | | |
|---|---|---|
| ۸۷۔ | کرنک | کنگل |
| ۸۸۔ | کورچالي | کچالو |
| ۸۹۔ | کیپ | نسوار |
| ۹۰۔ | ککریمه | پنجره ۔ قفس |
| ۹۱۔ | کوړلي | خلته |
| ۹۲۔ | ګوبنے | منداهو ۔ جگیا |
| ۹۳۔ | ګلاندوري | مرچکے |
| ۹۴۔ | ګرناټي | اَملتاس |
| ۹۵۔ | ګرګنجالي | کونځلي |
| ۹۶۔ | ګرپوے | بلغم |
| ۹۷۔ | لګادي | لاس ګاډے |
| ۹۸۔ | مځاک | مزه |
| ۹۹۔ | ماشوم سپنړکے | بناپیړک |
| ۱۰۰۔ | ملاکنډے | پیشتر ے ساک |
| ۱۰۱۔ | منګاسے | ماشے |
| ۱۰۲ | نکسه | خیسه |
| ۱۰۳ | وډون | مالدار ۔ دولتمند |
| ۱۰۴ | وړ | باران |
| ۱۰۵ | وقاره | سامان |
| ۱۰۶ | ووري | شرشم |
| ۱۰۷ | ولنګړ | انار |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰۸- | جاړه | د ځاروو راغونډولو هغه ځاې چې شپول تړې تاوُ وي . |
| ۱۰۹- | چلیه | د غټو جوارو وډې |
| ۱۱۰- | دانې | دغه ځل . دغه وار |
| ۱۱۱- | ډُوم | د نرو جوارو وړے |
| ۱۱۲- | ډماکے | د سرو مچو یا ډمبرو مچو ګبین |
| ۱۱۳- | کشوړ | یو صحرائي ځناور چې مېږي خوري چې وږے شي نزدې د مېږتون سره سملي . خپله وږده ژبه په زمکه خوره کړي . مېږي وربانډې د غوښې خیال وکړي او وربانډې راپنډ شي ، چې ښه ډېر شي ، بیا یې وخوري . دغه شان دا عمل بیا بیا کوي . |
| ۱۱۴- | پړکے | د پښې ګیټه |
| ۱۱۵- | شوتړیه | د وړیه نه جوړه شوې لښره چغه |
| ۱۱۶- | شام | د مرغِ زرین ماده |
| ۱۱۷- | لوبیټ | د مرغِ زرین نر |
| ۱۱۸- | کادم | ګنجه ګیدړه . ګِډه |
| ۱۱۹- | بوده | ډنګر |
| ۱۲۰- | خمبرے | خرپړے |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۲۱ | زنګۍ | انار |
| ۱۲۲ـ | کټۍ کي | ودڼې |
| ۱۲۳ـ | پچنې | پښې |
| ۱۲۴ـ | کلۍ | هغه غوا مېښه چې ښکرونه نهٔ لري |
| ۱۲۵ـ | کومۍ | شمشتۍ |
| ۱۲٦ـ | شالۍ | پیالـه |
| ۱۲۷ـ | شاخلے | څانـګي |
| ۱۲۸ـ | سرونخه | د پرتوګ بـډ ګ |
| ۱۲۹ـ | عباسي | اتهٔ انـین |
| ۱۳۰ـ | والګۍ | زکام |
| ۱۳۱ـ | چانګۍ | ځلۍ ـ جینۍ |
| ۱۳۲ـ | پړونګه | چُونګے |
| ۱۳۳ | تهوغک | یو مارغهٔ چې چینجي خوري چینجخور |
| ۱۳۴ـ | جګیا ـ | منداټو ـ ګړبټے |
| ۱۳۵ـ | چوړکۍ | لومبړه ـ ترورۍ |
| ۱۳٦ـ | درینګه | زلزله |
| ۱۳۷ـ | دوخن | هغه څاروے چې دکورنه په صحرا خوښ وي ـ هرېال . |
| ۱۳۸ـ | ولینه | دآس قېزي |

کۀ ګوهر صاحب اوغواړي نو داسې په سلګونو نور الفاظ ورته
هم په ګوته کولے شم ، چې تر اوسه په یو لغت ، یا دیوان او
یو کتاب کښې لا نۀ دي راغلي ، خو بیا هم په خبرو اترو کښې
استعمالولے شي ـ او حقیقت نه یې څوک انکار نشي کولے ـ

بیا دګوهر صاحب په خیال دغو ډېر په هنر جوړکړے شویو
الفاظو کښې علاوه دځنو نوؤ او اختراعي بڼې لرلو داسې الفاظ
هم شته ، چې مروجه الفاظو کښې دیئبنې هم لري او مشابهت
هم ـ خو دغه لږ کښې ـ

(۱) "بشکله" کۀ د "بل شان" په معنیٰ راتلے شي ، نو
"رونـهـلي" هم د رسنلولو یا روښانولو
معنیٰ کولے شي ـ

(۲) "بړیوړ" کۀ د "بړیږي" په مناسبت د "زنې" په
معنیٰ پکارولے شي ، نو "لمانځنه" د لمونځ
یا عبادت په معنیٰ ولې نا ؟

(۳) "مشرب" کۀ د "پیالۍ" یا "ګلاس" معنیٰ لري .
نو "مشربه" دې ولې دا وبو څښلو دکټوول
معنیٰ ونلري ؟

(۴) "مېشن لوښے" د مېشه په مناسبت "کۀ مېښې لوښے" یعنې
مېښې لوشلو لوښے استعمالولے شي نو
"یادي" د "یادولو" په معنیٰ هم
استعمالېدلے شي ـ

(۵) "نتـه" کهٔ د نـتي مېرمن تـه "نتیالۍ" ويـل د اعتراض خبره نـهٔ ده ، نو پـه "ملوـنه" د"مـلګرو" پـه معنیٰ د اعتراض ځـه جواز دے ؟

(۶) "ودهٔ زنې" یعنې د وادهٔ پـه مناسبت کهٔ پـه یوه علاقه د وادهٔ ډوډۍ تـه د "ودهٔ زنې" استعمال عام دے ، نو "ښـېرون د "ښـېرېدلو" پـه معنیٰ هم استعمالېـدے شي .

علیٰ هذا القیاس .

# اختتامیه

خپله دغه اختتامیه کښې گوهر صاحب په "پښتو خزانه" د یولسو خبرو پښا د یولسو اعتراضونو علاوه نور اعتراضونه هم کړي دي ، خو دا اعتراضونه هم لکه د تېرو اعتراضونو غوندې د حقیقت په میزان کښې هیڅ وزن نهٔ لري .

وړومبے اعتراض داسې شوے دے .

" اوله خبره داده چې د بابا هوتک په پښتو نو کښې په شپږم مخ "یلغار" لفظ قلمزد شوے دے او د هغه په ځائې پاس ورباندې "ناتار" لیکل شوے دے . دا اصلاح یا ترمیم څنګه اوشو؟ چا اوکړو ؟ "                (ص ۱۴۶)

بعینهی هم دغه رنګ د حمید بابا دیوې قلمي نسخې په غزل کښې د " کهٔ پتنګ " لفظونه قلمزد شوي او د هغو په ځائې ورباندې " پروانه " لیکلے شوے دے . اوس کـــهٔ د

---

ᵃ د نعیم شاه نعیم مرحوم قلمي نسخه

سعیدګوهر صاحب نه څوک داپښتنه وکړي چي دا اصلاح یا ترمیم څنګه وشو؟ او چا وکړو؟ نو محترم به یې څه جواب وکړے شي؟

شعر داد ے ــه

پروانه یو ځله سربازي په عمر
کړي دا کار په یوه شپه څو ځله شمع

دعبدالقادرخان ختک د "یوسف زلیخا"[۱] نومي مثنوي په یوه قلمي نسخه کښي یو لفظ چي لوستلے نشي، اګرکه دقلمزد ځائي وران کړے شوے دے او دپاسه وربانديٍ "مزکه" لیکلے شو ے د ے.

شعر داد ے ــه

نوم دي څه شهر دي کوم دے؟
کوم دي مزکه کوم دي بوم د ے؟

(ص ۶۱)

بیا که دسید محمود دکتاب "په تله کښي پا رسنګ" په ۷۶ - ۹۰ او ۳۰۰ مخونو پرله پسي د "تذکرة الاولیاء" "۱۹۹۳" او "تنقیدکا"۔ ځای "الشعراء"، "۷۹" او "هم دغه کمزوري" لیکل شوي دي، نو دا اصلاح یا ترمیم څنګه اوشو؟ او چا وکړو؟

نو بیا هم که سعیدګوهر صاحب ته د "تاتار" او "یوغل"

---

[۱] دا اسلامیه کالج پېښور دلابرټوري د

په معنو کښې څهٔ فرق تر نظره شوے وي ، نو د فرق دد غـه شک د پاره دې پښتو کښې تر اوسه د ټولو نه وروستو چاپ لغت ته رجوع وکړي - چې د "ناتار" دړیمه معنیٰ او "یلغار" وړومبې معنیٰ یې "یرغل" کړې دہ .

دوئم اعتراض-بیـکي -

"له نومونو سره د پخوانی مخطوطو په تقلیـد کښې چې کوم هم قوانی تعریفي القابات یکي هم هغه دے په دې مجبور وي چې د شاعر د مزاج اورجحان تعین هم وکړي لکه "عبداللطیف" اڅکزے چې له هغهٔ سره یې "شاعـر ظریف" پیوند کړ او بیا ئې فکاهیه مزاحیه کلام ورسره منسوب کړ - حالانکې عبداللطیف ضروري نهٔ دہ چې ظریفانه شاعري اوکړي ." (ص ۱۲۶)

خبره داده چې کهٔ سعید ګوهر صاحب د عبداللطیف اڅکزي نور کلام چرته لوستے وي او هم په هغه حواله یا بنیاد دادعویٰ کوي چې

"حالانکې عبداللطیف ضروري نهٔ دہ چې ظریفانه شاعري اوکړي ."

یا کړې وي . نو بیا خو یې خبره د منلو وړ دہ . اوکهٔ نه ، د عبداللطیف اڅکزي د نور کلام د بغیر مطالعې دا قسم اعتراض نهٔ

کوي ، نو خوښه یې خپله ده .

دریم اعتراض - وائي .

"پټه خزانه کښې شخصیات اکثر حقیقي او ورپورې تړلے کلام زیاتره مصنوعي دے - خو ددې مطلب داهم نهٔ دے چې فرضي شخصیات ورکښې هرګز نشته - بخپله امیر کروړ فرضي شخص او شاعر دے ."

(ص ۱۹۶ - ۱۹۷)

دامیر کروړ پحقله د فرضي شخصیت دا اعتراض هم دکوهر صاحب دخپل ذهن کارنامه نهٔ ده ، بلکې دایې هم د اکثرو اعتراضونو غوندې رانقل کړے دے - دا اعتراض غالباً دافغانستان یو دري ویونکي کړے دے ، چې جیبتي صاحب یې د ۱ اخلي شکاکان " تر سرخط لاندې په دغو الفاظو جواب کړے دے.

" که چیرې مونږ دا فرض کړو چې محمد هوتک ( لکه چې پر هغهٔ خوارکی تهمت سوی دی ) د پاچادرضائیت د حاصلولو لپاره دغه زوړ شعر د امیر کروړ په نامه جعل کړی دی ، نو یې ولې دغه جعل دامیر پولاد او یا دهغهٔ د پلار خرنک په نامه نهٔ کاوهٔ چې معلوم الحال او پېژندل سوی خلک وُ ، او په طبقات ناصري کی یې احوال ضبط دي".

---

له وګوره ص ۱۸ پټه خزانه څلورم چاپ ۱۳۵۶ هـ ش

ولې کوهر صاحب دغه ډېر معقول جواب ته هم سرزوري وائي
څوکه دا سرزوري وي نو بیا دکوهر صاحب دغه سرزوري ته
به څه وایو؟ دا فیصله دې لوستونکي وکړي.

بیا وائي چې کله دامیرکروړ شعرونه دهغه پلار امیرپولاد
سوري سره تړلے شوے وے، نو بیا خو هغه سلمې مجبوریه
ته ېږي نزدې کېدو او مسئله نوره هم شکمنه کېدو.

کله دکوهر صاحب په خیال یو سړے دیوې بلې ژبې
په مقابل کښې دخپلې ژبې قدامت ته د اولیت په خاطر
یوه جعلي تذکره لیکلے شي - او دخپل شعر وادب زمانه
تر کال ۱۳۹ھ رسولے شي، نو واقعي کله دامیرکروړ حماسه
یې دهغه دپلار امیر پولاد سره تړلے وے نو ذهغه مخه
چا نیولے شوه؟

کوهر صاحب کله لکه دافغانستان دیو داخلي معترض دکال
۱۳۹ھ دامیرکروړ نظم ته د شک په نظر کوري، نو امیرپولاد
سوري سره ددغه نظم په تړلو زیات نه زیات خبره به
شل کاله مخکښې تلې وه - دچا دشک په نظر څوک پابندي
خو نشي لګولے.

څلورم اعتراض:-

"په دې تذکره کښې دوخت دتعین دپاره کله د
شاعر ذېږېدنه یا د مرګ نېټه او کال نامعلوم هم وي
په څه نه څه پلمه سنه یا معروف او معلوم شخصیت

یا په تاریخي لحاظ مذکورې واقعې ته داسې اشاره
ضرور مؤلف کوي چې له هغې څخه د شاعر د عصر ټاکنه
ممکنه بلکې تر ډېره حده اسانه او یقیني شي دا
اهتمام د پښتو خزانې جزو لاینفک دے ؛" (ص ۱۸۷)

نو هم د غه شان د ډېرو شاعرانو د زېږېدنې او مړینې
د کلونو په غیر موجودګۍ کښې اکثرو تذکره نګارانو د اکثرو
شاعرانو (په قول د ګوهر صاحب ) د عصر یقیني کولو د پاره
معروفو شخصیتونو یا تاریخي واقعو ته اشارې کړې دي . که
چرې دا ګناه وي او بوه تذکره وربانديې جعلي کېدلے شي؛
نو هم په دغه ګناه د دنیا نورې اکثریتې تذکرې هم باید
چې جعلي وګرځولے شي . مثلاً که د اصغر حسین خان ،
نظیر لدهیانوي " تذکره شعرا ئے اردو " کښې د لاندې
درج شاعرانو حالات ولوستلے شي ، نو معلومه به شي چې
ذکر شوې تذکره کښې هم د اقسمه اهتمام د دغه تذکرې
جز لاینفک دے .

(۱) غلام مصطفیٰ خان یکرنګ

(۲) ضیاءالدین ضیاء

(۳) حکیم ثناء الله خان فراق

(۴) مرزا محمد تقي خان هوس

(۵) عبدالله خان اوج

(۶) برهان الدین زاړ

(۷) شاد عظیم ابادی او نور ډېر

هم ددغه اعتراض د مزید جواب دپاره دامیر دولت شاه سمرقندی "تذکرة الشعراء" کښې دلاندې ذکر شوو شاعرانو حالات کڼ وځېړلے شي، نو هر لوستونکے به بیا په دغه وپیلو کښې حق بجانب وي چې

"ددا سې قسمه اعتراضو کولو وړاندې بایدچې محوهر صاحب نورې تذکرې هم مطالعه کړے وے"؟

د پورته ذکر شوې فارسي تذکرې شاعران -

(۱) پوربهائی جامي (۲) اثیرالدین اوماني

(۳) فرید احول (۴) خواجه همام الدین تبریزي

(۵) ابن نصوح فارسي (۶) امیر یمین الدین طغرائی

او نور ډېر

دا دوه مثالونه ما صرف د لوستونکو د قناعت دپاره وړکړه . کني تقریباً د دنیا په هره لرغونې تذکره کښې داسې ډېر مثالونه شته چې کڼ ضرورت شو نو زه به یې ددغه اعتراض په جواب کښې پیش کولے شم -

پنځم اعتراض (و) دادے چې هرکله مرزا حنان بارکزے یو ډېر ښه کاتب موجود وو، نو د سردار مهردل خان مشرقي دپاره د پټې خزانې نسخه هغهٔ ولې ونهٔ لیکله ؟ او نور محمد خروټي ولې

ولیکله ؟

دا اعتراض هغه وخت کېدلے شو چې ګوهر صاحب د نورمحمد خروټي خط هم څېړلے وے - او بیا د مرزاحنان د خط سره یې مقابله کړے وے او هغه نه پس یې دا فېصله صادره کړے وے چې مرزاحنان د نورمحمد خروټي نه بنسهٔ کاتب وهٔ . دا یو طرفه فېصله به آخر څوک ومني ؟

(ب) بیا پوښتنه کوي چې نورمحمد خروټي نورې نسخې هم لیکلی دي او که نه ؟ د دغه پوښتنې نه د ګوهر صاحب مقصد چې هر څهٔ دي هغه به وي - خو که زهٔ هم دا پوښتنه وکړم چې ایا د مـلا لتاړخان د دیوان د قلمي نسخې علاوه روح الله کاتب کومې نورې نسخې هم لیکلي دي او کهٔ نه ؟ یا فېض علي ټوپي د قاسم بېګ د کاظم خان شیدا د قلمي دیوان نه پرته نورې هم قلمي نسخې لیکلي دي او کهٔ نه ؟ نو جواب به یې څهٔ وي ؟

شپږم اعتراض :- دا دے چې شاه حسېن د خپل دیوان او بیا په تېره تېره د پټې خزانې زیات نقلونه ولې ونکړهٔ ؟

تر اوسه زما له نظره تېر د قلمي نسخو کښې د معزالله خان مومند د دیوان واحده قلمي نسخه ده ، چې شاعر پخپل خط لیکلې ده . او س کهٔ زهٔ هم دا پوښتنه وکړم چې معزالله خان مومند ولې د محفوظولو پخاطر د خپل دیوان زیات نقلونه ونکړل ؟

یا بل کوم شاعر په کاتبانو د خپل دیوان د محفوظولو په نیت زیات نقلونه کړي دي؟ البته دکوم دیوان کهٔ دیو نه زیات نقلونه موجود دي - نو داهم په یو وخت نه بلکې ډیره موده پس د پښتو خزانې غونډې نقل درنقل دي.

اووم اعتراض :- دغه اعتراض کښې اعتراض کوونکے د پښتو خزانې څنو الفاظو ته په پښتو سترګو خودساخته وائي.

چې زیاتي هم ده او سرزوري هم - دغه ضمن کښې زمامشوره داده چې دکوم صاحب په قول داخودساخته الفاظ دکومې کومې منطقې د شاعر په منظوماتو کښې راغلي دي. باید هلته نه یې تصدیق کړے وے - آخر دا یې تصدیقه اعتراض به څوک ومني؟

بیا ډیر داسې الفاظ به هم وي چې اوس متروک شوي دي لکه داردو ژبې دا لاندې درج الفاظ.

| لفظ | معنی |
|---|---|
| نت | همیشه |
| تهک | لړ |
| ندان | بالکل |
| ماټی | خاوره |
| جیوړا | زړهٔ |
| باس | بوي |
| بچن | خبره |

انکھڼیان ستړګې

او داسې نور دي .

اتم اعتراض :- دغه اعتراض کښې لیکي چې

" پټه خزانه هغه زاړهٔ مروج الفاظ او اصطلاحات

لري ، کوم چې دهغه وخت شعري او نثري کتابونو

کښې خوندي دي ، لکه ترو ، سکه ، په هورسته

څخو ، خپسر او ځبله وغیره ."

اګرکهٔ پورته ذکر شوي لرغوني الفاظ د خوشحال ، رحمن او عبدالقادرخان په دیوانونو کښې څو څو ځله استعمال شوي دي ، بیا هم د دوئ کوم منظومات چې پټه خزانه کښې راغلي دي هغه یو هم دغه الفاظ لري . ځکه نو ضروري نهٔ ده چې کوم شاعر دې په خپل هر غزل وغیره کښې دغه لفظونه استعمال کړي . بعینهي هم په دغه دول پټه خزانه کښې د نورو شاعرانو کوم کلام چې راغلے دے هغو کښې د دغو لفظونو د نشتوالي دا معنیٰ هرګز نشي کېدلے چې ګني دهغو په نور کلام کښې به هم دا الفاظ نهٔ وي .

نهم اعتراض :- لیکي چې جیبي صاحب

" د مارګن سټرن د اعتراض د دفع کولو دپاره

د پټې خزانې کاغذ او سیاهي دکیمیائي تجربې دپاره

ولې وړاندې نکړل چې د اصلي کېدو نا قابل تردید

ثبوت یې ګرځېدو ." (ص ۱۵۰)

اعتراضونه خو د مارګن سټرن نه علاوه نورو څو کسانو هم کړي دي - خو د مارګن سټرن په شمولیت آیا دغو ټولو معترضینو دکیمیائي تجزیې دپاره د پټې خزانې غوښتنه هم کړې ده ؟ که چرې دا غوښتنه شوې وې نو ضرور به یې چرته کتاب یا مجله کښې ذکر راغلے وې - او که نهٔ وي نو په جیبي صاحب څهٔ زور دهٔ چې چا ته دې دکیمیائي تجزیې پیشکشونه کوي البته د دغو معترضینو د اعتراضونو جوابونه حبیبي صاحب ټکے په ټکے د پټې خزانې په څلورم اشاعت (۱۳۵۶هش) کښې کړي دي دا اعتراض خو هغه وخت کیدلے شو چې مارګن سټرن جیبي صاحب ته دکیمیائي تجزیې دپاره ویلي وې - او جیبي صاحب د هغهٔ په دغه خبره غلے شوے او یا څهٔ پس وپیش یې کړے دي .

خو ګوهر صاحب ته شاید دا خبره معلومه نهٔ ده چې پروفیسر بوسانی ته پخپله یو خط کښې مارګن سټرن وروستو بیا د پټې خزانې په حقله د خپلو مزید و تحقیقاتو پس د خپلې غلط فهمۍ د ازالې په خاطر دا خبره کړې ده چې پټه خزانه یو حقیقت دے چې د پښتو ډیره ارزښتناکه سرمایه یې له ورکیدو محفوظه کړې او تاریخ پاڼو ته یې سپارلې ده - دا خط پروفیسر بوساني پخپل کتاب د پاکستان او افغانستان ادبیات چې په کال ۱۹۶۸ء کښې چاپ شوے دے . کښې شائع کړے دے .

دد غه خط لنډه ترجمه محترم ډاکټر زیار داسې کړې ده .

" د ویاړنې ژبه نوی برېښنی سرې داسې سوچ کوي دا د اتلسمي پېړۍ په لمړۍ نیمای کې چې د ملي رنساس پېرو محمد هوتک دېته هڅېدلی چې پښتو شعر تر درې هغه ځوانې وښيي او په دې توګه چې ورته د امیرکروړ غوښتې زاړهٔ شعر وسنه په لاس ورغلی د هغو ښه‌ته چې په خپل لاس زړه ښوولی ده او یا بنایي له هم داسې خپل لاسي ښتو سره ددهٔ په لاس کې کېوتې وي . په هر ډول دغه تذکره نهٔ د جیبي خپل لاسي را اېستنه ده او نهٔ دهوتک او په دې کې هم شک نشته چې د پښتو ادب خورا زړې بېلګې یې له نشتېدو ځخه ژغورلی او را خوندي کړې دي او دا خبره کرانه ده چې ووایم د هغو زېښت به څو مره[۱] وي :

---

[۱] دوه میاشتنۍ مجله " پلوشه " کابل ص ۷ ۱۳۵۰ ش ه د بناغلي اصف صمیم په شکل یه .

لسم اعتراض :-

سعید گوهر صاحب په خپل دغه اعتراض کښې د پښتو ژبې د حروف تهجي متعلق بحث کوي او وائي چې هر کله د پښتو ژبې حروف تهجي د محمود غزنوي په دور (۳۸۷ - ۴۲۱هـ) کښې وضع کړے شوي دي نو بیا په ۲۲۳ هـ کښې ابو محمد هاشم د عربۍ ثخنه "دسالو دږمه" په کومو الفاظو یا املا کښې ترجمه کړه ؟

کهٔ چرې دا دښتیا وي چې د محمود غزنوي وزیر احمد بن حسن میوندي د پښتو د املا یا حروف تهجي جوړولو د پاره قاضي سیف الله یا څوک بل څوک گمارلي وي ، نو ددې مطلب خو دا نهٔ شو چې کنې پښتو حروف تهجي نهٔ لرل . زیات نه زیات خپل مخصوص توري لکه "څ" ، "ځ" ، "ښ" او "ږ" به یې نهٔ لرل . البته د عربۍ حروف تهجي خو موجود وو . او لکه فارسۍ چې د خپلې املا په ابتدا کښې د عربۍ "ب" ، "ج" او "ک" وغیره د خپلو موجوده تورو "پ" ، "چ" او "گ" بځائې پکارول ، نو دغه شان پښتو کښې کهٔ د "څ" بځائې "ز" ، "ځ" بځائې "س" ، "ښ" بځائې "خ" او "ږ" بځائې "ک" یا "گ" هم استعمال شوے وي . او بیا وروستو د پښتو په ذکر شویو مخصوصو تورو بدل کړے شوے وي ، نو هیڅ مشکله خبره نهٔ ده چې پښتو دې خپل تحریري کتاب ونلري .

یوولسم اعتراض :-

اعتراض دا دے چې پټه خزانه کوټه کښې ليکل شوې ده - او وجه یې دا ښائي چې څونکې ددغه تذکرې ديکلو په وخت کوټه کښې د تحقيق او تنقيد ميدان ښځي خالي وو، نو ځکه د کوټې زمينه ددغه کار دپاره ښه هواره وه - او کابل او پېښور کښې ځکه ونه ليکلے شوه، چې دغو دوارو ځايونو کښې ښه ښه محققين موجود وو ځکه د راز افشا کيدلو داحتمال له مخه يې کوټې ته ترجيح ورکړه -

د پېښور د محققينو او نقادانو په فهرست کښې د مولانا عبدالقادر دوست محمدخان کامل، عقاب خټک، سيدانوارالحق، عبدالحليم اثر خيال بخاري، بهادرشاه ظفر، کوثر غورياخېل، تقويم الحق کاکاخېل راقم الحروف او د پټې خزانې په مخالفت کښې د خېل پېښتږ نومونه شامل کړي دي، خو خبره دا ده چې پټه خزانه که بالفرض دخپل اشاعت (۱۹۴۵ء) نه دوه کاله وړاندې د سعيد گوهر صاحب په خيال چا ليکلې هم وي، نو دا به ۱۹۴۳ء وي - او په کال ۱۹۴۳ء راقم الحروف او د سعيد گوهر صاحب پېشرو دواړه[۱۳] دیارلس کلن وو - تقويم الحق کاکاخېل ۱۷ کلن، کوثر غورياخېل ۲۱ کلن خيال بخاري ۲۵ کلن او کامل صاحب ۲۸ کلن وو، هر کله چې مولانا عبدالقادر ډيلي کښې د "نن پرون" سرکاري مجلې په چلولو کښې مصروف وه . باقي شو عقاب خټک، سيدانوارالحق عبدالحليم اثر او بهادرشاه ظفر، نو دوي کښې وروستي درې[۳] د

پېښور له مرکزه کم نه کم د ۳۰ او ۵۰ میلو او عقاب خټک د ۱۲۰ میلو په مسافت لرې پراته وو .

بیا حیران په دې خبره یم چې کوټه کښې د محمد ایوب خان اڅکزي او عبدالصمد خان اڅکزي په موجودګۍ د تحقیق او تنقید څانګې څنګه ښخې خالي وې ؟ او که بیا د هغه وخت د پېښور په محققینو او نقادانو کښې یو ۱۷ کلن شاملېدلے شي . نو بیا خو سلطان محمد صابر هم کوټه کښې موجود وه

آخري اعتراض :-

اګر که دا آخري اعتراض نه دے او دې نه پس هم یو اعتراض شته . خو بیا هم اعتراض ضرور دے . لیکي چې

"پټه خزانه" یا خو د فارسۍ په مقابل پښتو د فارسۍ نه د زیاتې زړې ژبې ثابتولو په غرض لیکلے شوې ده او یا چا پښتو ژبې او ادب سره د خورا ډېرې مینې او رغبت په نتیجه کښې لیکلې ده .

خو نه شم وئیلے چې آخر دا الهام په کوم صاحب څنګه شوے دے ؟ او که الهام نه وي نو دا قسمه خبرې په کوم دلیل او بنیاد کولے شي ؟ خو بیا هم که زه دا اووایم چې کوم صاحب خپل د غه کتاب د چا په لمسه لیکلے دے . نو کوم صاحب به څه ووئیلے شي ؟ بنه به دا وي چې د غه ضمن کښې د فکرونو او ګمانونو اسونو زغلولو ته له سره هډو اهمیت ورنکړے شي . او لوستونکو د قناعت د پاره

باید هره خبره د کوټلو اثباتو په بنیاد وکړے شي .

سعید ګوهر صاحب په خپل دغه وروستي اعتراض کښې وړومبے خو دا پوښتنه کوي چې

" پښتو ټولنې ته د پټې خزانې نسخه چا ورکړه ؟ "

او بیا خپله یې داسې جواب هم کوي .

" یقیني خو داده چې پخپله خداۓ بخښلي حبیبي د پښتو ټولنې ته ورکړې ده . "

بیا لیکي .

" که په دې حقله په ریکارډ کښې هیڅ نۀ دي یا دا اظهار اجازت یې نۀ دي بیا خو خبره نوره هم شکمنه کیږي . ریکارډ په دې حواله هر څۀ منځ ته راشي او د پټې خزانې پښتو ټولنې ته د ورانډې کولو څخه د اشاعت تر منظورۍ پورې ټوله سرکاري تحریري کاروائي باید لفظ به لفظ چاپ شي ؟ " (ص ۱۵۱)

خبره داده چې دا اعتراض ګوهر صاحب هغه وخت ولې نۀ کولو چې حبیبي صاحب ژوندے وو ؟ یا هغه وخت چې د دې خبرې سپیناوے یا د دې اعتراض جواب ممکن وو ، ولې نۀ کولو ؟ اوس په داسې حالاتو کښې د ریکارډ مطالبه کول ، چې د بده مرغه د افغانستان خفیه رازونه هم لوټ او چور شوي دي محض خپل موقف ته پرې د تقویت او فائدې تر لاسه کولو

یوه ښه موقع ګڼلې ده -

" د شاعرۍ مشترک سبک او لفظیات " د عنوان لاندې باب کښې ګوهر صاحب لیکي .

" زما په خیال ددې سبک د تجزیې دپاره د علامه عبدالحي حبیبي مرحوم د خپلې شاعرۍ حاج اختتل هم یو اهم ضرورت دے . کېدے شي چې په دې تقابلي مطالعه کښې د دغه شعري سبک د پټې خزانې او تذکرة الاولیاء د شاعرانو له مشترک اسلوب سره سمون وخوري او ځنې ناڅه نوے اړخ را برسېره شي ." (ص ۱۳۸)

ماته فی الحال د حبیبي صاحب یوه منظومه چې مرحوم د کال ۱۹۵۹ء د نومبر په نولسمه[۱۹] ورځ د اولسي ادبي جرګې په اووه ورځنۍ غونډه کښې د تنقید دپاره پېش کړې وه. او کامل صاحب ورته د بناغلي سیف الرحمٰن سلیم د یوې پوښتنې په جواب کښې د تکنیک په اعتبار غزل او موضوع په لحاظ نظم وئیلي دي ، په لاس راغلې ده - د غه نه علاوه د محترم حبیب الله رفیع په کتاب " د استاد یاد " کښې هم د حبیبي صاحب کوم کلام چې چاپ شوے دے سعید ګوهر صاحب او نورو لوستونکو ته د پټې خزانې او تذکرة الاولیاء د شاعرانو سره د اسلوب د سمون حاج او جانزې اختتلو په غرض پېش کوم

---

له وګورئ " د اولسي ادبي جرګې د غونډو روداد " ص ۱۴۷ تا ۱۴۹

ہ

په غوږو داورئ فرعونانو چې موسئ راځي
بيا تزلزل په تاج و تخت کښې د دارا راځي
ستمګرانو ګورئ اروئ چې مظلوم ويښيږي
کاروان خوځيږي بڼغ له لرې د دارا راځي
[۱] د مظلوم اوس بيا رسيږي تر اسمانه پورې
تندرې او هتکي يې پرخول د ظل الله راځي
بهاره مه راځه! لاله مې اوس څه نه دے پکار
د ستمګر سور سېل د وينو پر دنيا راځي
پر بېنواؤ چې په ظلم حکومت چلوي
ذور و زر دواړه يې په لاس د بېنوا راځي
هغه مانړه چې پر هډو د عوامو تينګه
اوس يې نوبت د نړېدلو د تالا راځي
د انقلاب سېل راروان دے ستمګره واوره
په څه تېزئ په څه وحشت په څه غوغا راځي
زر به مظلوم نتلے وشلوي کړي د ستم
پر[۲] زمول چمن د ازادئ مسته صبا راځي .

---

[۱] کټ مټ ويکل شو .

[۲] کېدلے شي دا " پر زمونږ " دي .

## د

# خوشحال روح ته خطاب

د پښتون بهار له تاؤ  اې مېړه نره سرداره
تا پښتو ده ژوندۍ کړې  لهٔ ختک ترکنده هاره
پښتانهٔ دې یادوینه  ننګیالے ښاغلے پلاره
چې پر مرګ دې ځېره نهٔ وه  د پښتو د ننګې لاره

تاویل" پس له مرګه هله تاسې ښخ کئ مړ خوشحال
د مغولو د ښو ګرزې چرې نکی بیا پائمال"

نهٔ یې مړ ته خو ژوندی یې  اې ادیبه ننګیالیه!
دا ښهٔ نوم دې دایمي دے  په ابد ژوندون ژوندیه!
تهٔ زمونږ ملي پېشوا یې  د پښتو پلار توریالیه!
پښتنواله دې ژوندی کړه  د پښتون لوې بریالیه!

تا مونږ ته وښودله ، د پښتو دا سمه لاره
ستا په توره به نازېږو ، د پښتو پښتونه پلاره

د پښتون ببړی چپه وه  د غزني دوران ؤ تللے
د غوري لويي وه ورکه  د سوري قام ؤه نتلے

د لودین جنډې نسکورې  قطب الدین په زړه داغلې
د مغولو طالع لوړ وه  د اورنګ توغ رپېدلې
یو ځو ستا د سوز ناري وې، چې پښتون ېې را ولاړ کړې
کمه نه ژر وو چې خپل کورې، د مغل په لاس ویجاړ کړې
ستا نغمه وه څه دلسوزه  څه تو ده له خونده ډکه
د غورې، سورې افکار دو  خپرو له دې پر ځمکه
د خپل دور فلاطون وې  تا مني هر سړے ځکه
کندهار تر ننګرهاره  له مهمندو تر خټکه
پښتنو ته تا ورکړے په ښۀ شان درس د حیات دے
ستا میراث د دوی ته عزم، ننګ، تورۀ او ثبات دے
زمانه ده بدله شوې  شلم قرن څۀ بېباک دے
د ضعیف غوښې قوي خوري  چې غښتلے دے سفاک دے
تمدن په وینو سور دے  د هغۀ چا چې یې واک دے
د شلمې پېړۍ دور دے  چې ضعیف باندې تاړاک دے
په دې عصر دې جنجال کښې، ستا سبق موږ ته کافي دے
ستا د تورې تورې پاته، زموږ هر رنځ لره شافي دے
سر راپورته کړه سرداره  شلم قرن تماشې دي
شا وخوا پر ګردې ځمکه  د ملّت، نشین ناري دي
ذرې وصل دي ولمر ته  څۀ عجبي ننداري دي
ستا د باغ هم ښکته پورته  په دې غرو کې د غږ غږې دي
ستا خوږ باغ وۀ پښتنو ته  د پښتون نجیب ملّت ته
قبائل ورک کړئ له منځه  ځان کړئ وصل ملیّت ته

# سپوږمۍ

دا نظم یې د لاهور په یوه بڼ کې د شپې له خوا د
پوردېسۍ په حال کښې ویلی دے. (رفیع)

---

داسمان سپینې سپوږمیه! څه دې روڼ، تنده دې ورین دے
شا و خوا دې پلوشې څې په دنیا دې تورېږ سپین دے
د ویرجنو خوا له کورې راسه ذرۀ مې ډېر غمگین دے
راسه زما کرانې پرې مخې!
چې یو دم د زړه خوا له کړو
سره کښېنو لاس تر غاړه
خو په خوا سره پاله کړو
ښکلې پېغلې مۀ شرمېږه پټ دې ولې تر غره څخ کئ
ته چې زما دَ زړهٔ ملګرې تل به نورو پر موږ رخ کئ
په کوچنۍ هم ته زما وې ما به تاته تل اخ اخ کئ
چې کوچینے وَم ما بللې
ته " الاکوکو " سپوږمۍ(۱)

---

(۱) دا بند دوې نورې مصرې په منقول عنها نسخه کښې نشته. (رفیع)

لهٔ هېواده لېرې کړ‌ې خم     زما په زړهٔ پورې مېنګړې
د وطن بل څوک خو نسته     دلته يم يوازې لېرې
نهٔ خوانهٔ ياران خپلوان سته     نهٔ د دوی خوږې خبرې

يوه تهٔ يې زما مېنګړې
راسره يې له هېواده
هم هورې يې هم دلې يې
خدای دې تل ولره ښاده

چې زهٔ درومم، تهٔ هم درومې     چې زهٔ ناست يم، ناسته تهٔ يې
په څنګ راسره څغلې     چې بيده يم تهٔ بيده
وفاداره ښکلې پېغله     تهٔ سپوږمۍ که پښتنه يې؟

ستا وفا د پښتنو ده
د آسمان پېغلې نجلۍ
په خوی ښکلې پښتنه يې
د غمجن مين شملۍ

---

د منټګمرۍ ښار پنجاب
اګست ۱۹۵۵ء

# چېل زړه ته

زړه ! راځه چې سره مله سو
څه تېږې یک تنها ته؟
زه تنها یمه مل غوارم
بوزه ما د پښتونخوا ته

راځه ځو به ځنګو غرو ته
د نسیم به خواله کړو سو
له "تیراهه" به ور تېر سو
سیلانې به د "سپین غر" سو

راځه لاس چې سره ځو نه
مخکښې اوږد او ګران سفر دے
د پردېسو مل سي خدایه!
دا سفر نه دے سقر دے

زړهٔ راځه چې ځو روان سو
د لیلې وښکلې ښار ته
ته چې ؟ ما درسره بوزه
د "بیمن" نیکه مزار ته

ته خو ښهٔ یې زړهٔ! چې تلې شې
زهٔ محروم یم له وطنه
بلبل پروت یم په قفس کښې
ورک له باغه له چمنه

زړهٔ ! ورځه! خو یوسه وښکې
ملغلرې ارمغان زما
ښایي دا چې یاد به کړینه
زما دوستان په دې بستان زما

زړهٔ ورځه الله دې مل سه
د وطن زیارت له ورسه
زما سجدې نیازونه یوسه
جبین سا په هغه ورسه

کۀ زۀ تللې نسمه، تۀ حٔه
تند ے بد دہ د لیلې درته
زما وښکې د زړۀ وینې
کړه تحفه د یار حضرته

امید دے چې د دغه کلام نه به تاسو د جیبي صاحب، پېټې خزانې او تذکرة الاولیاء د رنګ، خوند، اسلوب او انداز بیان اندازه په اسانه ولګوئ چې دا څېلو کښې سره څومره سمون خوري؟

د جیبي صاحب د شاعرۍ په حقله حمزه صاحب بناغلي ډاکټر سید چراغ حسین شاه ته په خپل یو خط کښې لیکي۔

"جیبي صاحب مرحوم کوم وخت چې پاکستان کښې وو۔
د اولسي ادبي جرګې اجلاسونو ته به راتلو۔ ډېر درونډ
محقق، مؤرخ او عالم وو۔ شاعري یې کمزوري وه"
(ژوندي خطونه ص۴۸)

# د مؤلف د ادبي کار فهرست

## تحقیق او ترتیب :-

(۱) دیوان بېدل - ورومبی اشاعت اکتوبر سنه ۱۹۵۷ء

(۲) دیوان معزالله خان مومند " " سنه ۱۹۵۸ء

دویم اشاعت جنوري سنه ۱۹۶۱ء

(۳) دیوان اشرف خان هجري ورومبی اشاعت مئی سنه ۱۹۵۸ء

(۴) دیوان سعید " " جون سنه ۱۹۵۸ء

دویم اشاعت ستمبر سنه ۱۹۶۷ء

(۵) دیوان حسن ورومبی اشاعت ستمبر سنه ۱۹۵۸ء

(۶) دیوان مرزا خان انصاري " " سنه ۱۹۵۹ء

(۷) دیوان قنبرعلي خان " " جنوري سنه ۱۹۶۰ء

دویم اشاعت نومبر سنه ۱۹۷۲ء

(۸) دیوان کاظم خان شیدا ورومبی اشاعت مئی سنه ۱۹۶۵ء

(۹) دیوان عبدالقادر خان ختک " " اپریل سنه ۱۹۶۷ء

دویم اشاعت فروري سنه ۱۹۷۲ء

(۱۰) دیوان رحمت داوي ورومبی اشاعت سنه ۱۹۸۰ء

(۱۱) دیوان فدا " " مئی سنه ۱۹۵۷ء

دویم اشاعت نومبر سنه ۱۹۷۲ء

(۱۲) قصه شاه وګدا ورومبی اشاعت نومبر سنه ۱۹۵۷ء

(۱۳) د غروۀ کلونه " " سنه ۱۹۵۷ء

دویم اشاعت سنه ۱۹۹۱ء

(۱۴) کاکاجي صنوبر حسین وړومبے اشاعت جون سنه ۱۹۹۱ء

(۱۵) خمخانۂ یثرب " " سنه ۱۹۸۹ء

(۱۶) د فکرونو ډیوې " " دسمبر سنه ۱۹۹۳ء

(۱۷) بازنامه (افضل خان خټک) " مارچ سنه ۱۹۹۴ء

(۱۸) دیوان اشرف خان هجري (فارسی) " جنوري سنه ۱۹۹۴ء

## خوشحالیات :-

(۱۹) اخلاق نامه وړومبے اشاعت سنه ۱۹۸۱ء دوئیم اشاعت سنه ۱۹۸۲ء

(۲۰) فراق نامه " " جون سنه ۱۹۸۳ء

(۲۱) طب نامه " " دسمبر سنه ۱۹۸۴ء

(۲۲) بازنامه " " سنه ۱۹۸۵ء

(۲۳) سوات نامه " " اکتوبر سنه ۱۹۸۶ء

(۲۴) نارم حق " " نومبر سنه ۱۹۹۶ء

## تالیفات :-

(۲۵) د اباسین څپې وړومبے اشاعت اگست سنه ۱۹۵۷ء

(۲۶) پښتانهٔ لیکوال وړومبے اشاعت سنه ۱۹۵۸ء دوئیم اشاعت سنه ۱۹۶۱ء دریم اشاعت سنه ۱۹۹۴ء

(۲۷) ورکه خزانه اول ټوک وړومبے اشاعت فروري سنه ۱۹۶۰ء

(۲۸) ورکه خزانه دویم ټوک " " دسمبر سنه ۱۹۶۰ء

(۲۹) نصرالله خان نصر " " جون سنه ۱۹۶۶ء

(۳۰) محمد گل خان مومند " " دسمبر سنه ۱۹۹۵ء

## تصنیفات :-

(۳۱) نغمه زار وړومبے اشاعت سنه ۱۹۴۸ء دویم اشاعت سنه ۱۹۶۴ء

(۳۲) زما سندرې وړومبے اشاعت جنوري سنه ۱۹۷۳ء

(۳۳) خاپونه او خالونه ۲۲ دسمبر ۱۹۹۳ء

(۳۴) چادگل " " فوري ۱۹۷۳ء

(۳۵) پنجابي ژبه او ادب " ۱۹۸۲ء

(۳۶) قومي ترانې " " ستمبر ۱۹۶۵ء

(۳۷) بازگشت

## تنقید او تحقیق :-

(۳۸) تول پارسنګ دروميے اشاعت اکتوبر ۱۹۹۳ء

(۳۹) حقیقت دا دے " جنوري ۱۹۹۸ء

## ماشومانو دپاره :-

(۴۰) دوه شپانهٔ دروميے اشاعت ۱۹۵۹ء

(۴۱) ګوارچي " " "

(۴۲) د نیکۍ بدله " " "




(۴۳) خدائي روزي رسان دے " "

(۴۴) مومن خان شیرینه "

(۴۵) ادم خان درخانۍ " "

۴۶ لوبې " " ۱۹۸۲ء

## ترجمه :-

(۴۷) حضرت عثمانؓ ذوالنورین دروميے اشاعت ۱۹۹۵ء